د ۱۳۹۳ش کال دوهمه ګڼه
(جوزا - سرطان)

# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنی خپرونه



د پیرمحمد کاکړ شاعرانه تصویرونه

د غره او د وره

وختونه او یادونه

د سومنات فتحه

د پیرمحمد کاکړ یاد

علامه حبيبي:

# د پیرمحمد کاکړ یو ښکلی شعر

ببلنانه په غم شريك کړم د غمجنو
د هـر چـا پر غـاړه ژاړم لكه نی

ادب او شعر د شاعر او ويونکي د نفسي کيفياتو هينداره ده. د شاعر روح د ده په وينا کي تجلا کوي، او که موږ په پښتو ادب کي هغه څه سره راټول کړو چي شاعرانو د خان په خصوص کي ويلي دي نو به دغه ضرور يوه په زړه پوري مجموعه سي، چي په هغي کي به د خپلو شاعرانو اميال، خاطرات، روحي کيفيتونه، د دوی د زړو پټي ارزوگاني په ښکاره ډول ليدلای سوای.

پيرمحمد کاکړ په پښتو شاعرانو کي يو خاص امتياز لري چي په حقيقي ډول شاعر دئ، يوازي ناظم نه دئ. د ږوب او کاکړو د غرو او رغو دغه خوشنوا بلبل په خپلو خوږو نغمو او ترانو کي د خپل دردمن زړه خواله ښه څرگندولای سي او په روانه او خوږه ژبه هغه څه ويلای سي چي د انسان د اروا په عميقو گوټونو کي پټ دي، او د هغو تعبير يقيناً د يوه خاص فني استعداد او ارټيستيکي نبوغ کار دئ او هر معمولي شاعر يا ناظم نه سي کولای چي د زړه په هغه اسرار الوده حريم کي داخل سي

پښتو شاعرانو تر پيرمحمد کاکړ دمخه هم داسي ډېر څه ويلي دي چي موږ ئې په ادبي او ناقدانه کتني سره د خاص ارزښت وړ بولو او کولای سوای چي په غوره آثارو کي ئې وگڼو او د کريټيکل تاله په پلو کي ئې د ښه تول او ادبي ارزښت لرونکي وشمېرو. د خوشحال خان خټك په ضخيم کليات کي ډېر داسي اشعار سته، چي شاعر د خپل زړه پټي گوښې پکښې څېړلي او د اروا تجليات ئې پکښې ځلولي دي.

مگر د خوشحال خان د ژوندانه مهم اړخ او د ده د سيرت او کرکټر بنياد خو د خانی، ليډرشپ او تورياليتوب پر سټو ولاړ وو او په ړېه ئې خپل کرکټر داسي ښود:

و اغيـار تـه لکـه کـانی، مـوم و يـار تـه
پـه سـختی او پـه نرمـی کي هغـه زه يـم
لکـه بـوټی د کيميـا پـه مرغـزار کي
چي پـه حـال مـي خـبردار سي د هغـه يـم
تنـدر هـم زمـا لـه ذاتـه نـه پيـدا دئ
پـه سـپين زړه کي د باران سـپيڼي اوبـه يـم

د خوشحال خان د سيرت دغه کلك اړخ د ده په عاشقانه اشعارو کي هم ښکاري په مينه کي د عاشق غرور او ځان ځاني نه ځايېږي او د مين نياز او عاجزي تل د دلربا د جلال محضر ته تحفه وي، خوشحال هم خپل نياز وړاندي کوي او وايي:

بې نياز څه خبر له نازه چي ناز څه دئ
ستا د سـترگو بلا واخلم ناز پر مـا کړه
زه دي توان د خرخښـو لـرلای نه شـم
که دي زړه زما په مرگ دئ دا اداء کړه
(پاته د پښتی په دريم مخ کي)




# کندهار



علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

دریمه دوره
د ۱۳۹۳ش کال دوهمه ګڼه (غبرګولی - چنګاښ)
پرله پسې ۶۳ مه ګڼه



**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمنې لیکنې نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکنې لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهنې حق لري.
- را استول سوي لیکنې بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کې د مجلې بیې**

| هیواد: ۲۰ - افغانۍ |
|---|
| پاکستان: ۵۰ - کلداري |

**کلنی ګډون**

| هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ |
|---|
| پاکستان: ۳۰۰ - کلداري |
| نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره |

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰




## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

د اداري یادابنت:

# د پیرمحمد کاکړ یاد

پیرمحمد کاکړ د پښتو دېوان لرونکی شاعر دئ. زموږ دغه شاعر د دېوان تر څنګ دوه نور تالیفات د "معرفة الافغاني" او "هدایة المبتدي" په نومونو لري. لومړی هغه ئې څو واره چاپ سوی خو دوهم ئې لا تر اوسه د چاپ انتظار باسي. د احمدشاهي دورې دغه اوځار شاعر خپل دېوان له نن څخه (۲٤۰) کاله مخکي بشپړ کړی دئ. دېوان ئې پنځه زره بیتونه لري او په هند او افغانستان کي چاپ سوی دئ.

د پیرمحمد کاکړ د دېوان د بشپړېدو ۲٤۰مه کلیزه د روان (۱۳۹۳ش) کال د جوزا د میاشتي پر (۱۷ - ۱۸) تاریخ د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست له خوا د دوې ورځني سیمینار په ترڅ کي ولمانځل سوه. دغه دوې ورځنی سیمینار د افغانستان د جمهور رئیس ښاغلي حامد کرزي په پیغام پیل او دوې علمي ناستي ئې لرلې. په دغو دوو علمي ناستو کي د مرکز کابل، همسایه ولایتونو او کندهاري لیکوالو له خوا د پیرمحمد کاکړ پر ژوند، عصر، اشعارو او تالیفاتو باندي بېلابېلي مقالې ولوستل سوې. د دغو مقالو ځیني ئې د کندهار مجلې په دې ګڼه کي د علاقه مندانو له پاره چاپ سوي دي، خو د سیمنیار او زموږ د دغه حقدار لیکوال او شاعر په باب ټولي لیکل سوې مقالې به په یوه بېله مجموعه کي چي "د پیرمحمد کاکړ یاد" نومېږي چاپ سي.

دا د ملا پیرمحمد کاکړ د یادوني په اړه لومړی سیمینار دئ چي د دغه لوی او حقدار شخص تر مړيني وروسته په لومړي وار نیول کېږي. دغه ډول سیمینارونه نه یوازي دا چي د اسلافو حق اداینه پکښې کېږي، بل لا نوي نسلونه د خپلو مشرانو له کارنامو او ښادنامو څخه هم خبروي.

ملا پیرمحمد کاکړ د خپل حزین او د بېلتانه په غم لړلي طبعي له اسیته داسي شاعري کړې چي د پښتو ادب پوهانو د ځانګړي سبک خاوند بللی دئ. په دې غم کي ئې یوازي ځان مدنظر نه دئ، بلکي لکه نی د نورو پر غاړه هم ژاړي او د هغوی په درد او سوز هم ځان شریک او ورګډ بولي. د دوی دغه اجتماعي خصوصیت دوی له ډېرو نورو پښتنو شاعرانو څخه بېل کړی دئ. لوی استاد د دوی په باب داسي نظر لري:

" پیرمحمد کاکړ په پښتو شاعرانو کي یو خاص امیتاز لري چي په حقیقي ډول شاعر دئ، یوازي ناظم نه دئ. د ړوب او کاکړو د غرو او رغو دغه خوشنوا بلبل په خپلو خوږو نغمو او ترانو کي د خپل دردمن زړه خواله ښه ځرګندولای سي او په روانه او خوږه ژبه هغه څه ویلای سي چي د انسان د اروا په عمیقو ګوټونو کي پټ دي، او د هغو تعبیر یقیناً د یوه خاص فني استعداد او ارتیستیکي نبوغ کار دئ او هر معمولي شاعر یا ناظم نه سي کولای چي د زړه په هغه اسرار الوده حریم کي داخل سي".

زموږ د دغه خوشنوا شاعر یاد دي تازه او همېشه وي!

مینه او ادب



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

# د کندهار نامیان، ځوانان او یاران

(لومړۍ برخه)

ښاغلي عبدالباري جهاني ترمخه هم د کندهار پر پایلوچانو باندي لیکنه کړې وه چي زه ئې و هغسي لیکني ته وهڅولم، او اوس ئې بله لیکنه په دغه اړوند د (پایلوچان او عیاران) تر نامه لاندي کړې ده. دغي بیا هم زه و دغي پسې لیکني ته هڅولئ یم.

ښاغلئ جهاني له ښلابېلو پېښناولو څخه ړغېدلئ دئ لکه څنګه چي ئې د لیکني له نامه څخه ښکاریږي. نو زه به هم د ده پر پله باندي پل کښېږدم.

د سیاست په میدان کي مو تاریخي نامیان یا اتلان میرویس نیکه او احمدشاه بابا دي چي لوی افغانستان ئې جوړ کړئ. خو له نا اهله وګړو څخه هم افغانستان کوچنئ سوئ دئ او هم ئې د دوی یاد تازه کړئ نه دئ. که به د دوی افغانستان آزادوني په ویاړ رخصتي نه وي، د ویاړ او درناوي له پاره خو ئې باید غونډې سوي وي، څو د دوی درناوی ئې کړئ وي.

د علمیت په میدان کښي مو تکړه نامیان لوی استاد پوهاند علامه حبیبي او پوهاند علامه عبدالشکور رشاد دي. دوی دواړو ډېر شاګردان روزلي دي. بل په علمیت او ښوونه کښي تکړه او پیاوړئ استاد ښاغلئ محمدانور نومیالئ ؤ. د ادب په میدان کښي مو ستر ادیبان ښاغلی عبدالرؤف بېنوا او ښاغلئ عبدالباري جهاني دي.

دغه مو د ننګ د میدان نامیان ول، د جنګ د میدان نامیان به مو ډېر لرلي وي، خو په وګړي کندهار کښي ئې یاد او تاریخ کښل سوئ نه دئ. نه مو د غېږبازۍ د میدان نامیان

کله چيري چا ياد کړي دي. زما په کوچنيوالي کښي رازمحمد غېږباز ډېر مشهور ؤ او په هلکيني کښي مي عبدالحکيم غېږباز ډېر مشهور ؤ. بل نصرالله غېږباز ډېر شهرت لارء. دء په خواجه ملک کښي ډېره غېږ ايستله. ښايي هورې به ئې ما غوندي خپلوان لرل. هورې ئې هيڅ سارئ نه لارء. دء به هورې د اختر په ورځو کښي غېږ ايستله او ځوانانو ته ئې غېږ ايستل ورښوول. په ځوانانو کښي محمدعظيم او زموږ د مکتب ځوانکي ببرک ښه غېږ ايستله او هم ئې ډېر جنګونه کول.

زما تر شل کلنۍ دمخه په کندهار کښي مشهور ناميان بنګ حبيب الله، شين عبدالکريم، حاجي عبداللطيف د شېرزي پلار، کپه نظر، حسنو، پيرو او احمد اخوندزاده ول.

په دوی کښي بنګ حبيب الله او پيرو او شېرو ډلي لرلې. پر دوی باندي پای لوچان ورتول ول. پايلوچان مسکينان ول. بنګ او شېرو که څه ډلي لرلې دوی هم لځي پښې ګرځېدل. دوی هم ناميان او هم پايلوچان ول.

ناميان هغه ول چي دوی به جنګ کړئ ؤ، په چاړو به وهل سوي يا به ئې بل وهلئ ؤ. په پخوا کښي دغسي کسان د پوليسو په ماموريت، سرماموريت او قومنداني کښي سخت وهل کېدل. هغه چا چي به آخ کښلئ نه ؤ يا به ئې اقرار کړئ نه ؤ او پر ښکاره جرم به ناګاره ؤ، دی به په ناميانو کښي يادېدئ.

بنګ حبيب الله ډله لرله او پيرو ډله لرله. نورو به هم يوء يا بل کوچنۍ ډلي لرلې. دوی دغه ډلي جوړي او په ځان پسي کړي نه وې. هغيو ځانونه په خپله په دوی پسې کړي ول. دوی ډېری پايلوچان ول. و ناميانو ته ئې د خپل مشر او سرغنه په سترګه کتل. دغه د دوی له پاره وياړ ؤ چي په يوء يا بل نامي به پسې ول. ځيني بيا سم هلکان ول، خو د نورو له لاسه څخه ئې و دغو ناميانو ته پناه وروړې وه.

ناميان په سرې سره او پايلوچانو په عمومي توګه، بېله سيالانو څخه په بل چا کار نه لارء. زء يوه ورځ د شپې نهه بجې مهال د پلار سره په دوکان کښي ناست وم چي شين عبدالکريم راغلئ. په ورسره ږغېدنه کښي زما پلار خوشکه ورته وکړه. زما د پلار ښکنځل ملارګی ملا شينئ ؤ. دء دغه ښکنځل و شين عبدالکريم ته ځکه کول چي دء ولي ږيره خرېيلې وه. شين عبدالکريم تر پايه پوري چوپ او خاموس ناست ؤ. هيڅ ئې نه ويل. کله چي دی ولاړئ ما و پلار ته وويل تا ولي داسي ښکنځل ورته وکړل. ته دی نه پېژنې؟ دی شين عبدالکريم دئ. دی د ټولي کابل دروازې نامي دئ، څوک څه ورته ويلای نه سي.

خو په ناميانو او پايلوچانو کښي کوچنی حرکت د لړ نده جنګ باعث ګرځېدئ. که به چا پټو ټک واهه، سيال ئې سم د لاسه اعتراض پر کاوء چي ولي دي داسي وکړه. که به ئې وټوخل يا به ئې غاړي تازه کړې يا به ئې برګ برګ ورته وکتل، دغه د جنګ دانه اخيستل وه. مانا راځه چي سره معلومه ئې کو. له لويه سره څخه به جنګ په ډبرو، سوټلي، او متار ؤ، خو زما په هلکيني کښي جنګ په چاړه او ځنځير ؤ. له چاړې څخه ځيني ژوندي پاته سوي دي او ځيني بيا هلکان او نوي ځوانان ځني وژل سوي هم دي. دا ځکه چي تعليمات ئې نه ول.

زما په هلکواله کښي د ۱۳۲۵او ۱۳۳۵ش تر منځ ناميان او پايلوچان بدوان نه ول. په بل چا ئې کار نه لارء. غلا، بد ويل او بد کول په دوی کښي نه ول. زء په شنه خړه له دوميله توپک سره و سالوخان چمن ته يوازي تلم چي د اوبو په کوړم کښي به مي هورې پر هېلیانو باندي ټکان کول، يا به مي کوتري خواراني ويشتلې. له دوميله توپکه سره و ليرو کلو ته هم

تللئ یم.

د امن او امانی یو عامل به د خلگو روحیه داسي وه. د ځان په ناسیال ئې کار نه لاره. خو له سیالانو سره ئې جنگونه کول. ناسیالو که به و نامیانو ته بد وویل هم ئې څه نه ورته ویل. یو سهار وختي احمد اخوندزاده ناست ؤ، و سټوف Stove ته ئې باد ورکاوه. بل دکاندار چي عادي کم ځانه سړی ؤ، دی ئې پر شا باندي او پر اوږو باندي په سوکانو واهه. ده نه څه ورته وویل او نه ئې مخ ورواړاوه. دا چي د دوی تر منځ څه پېښه وه، په خبر نه یم.

ښاغلئ عبدالرحیم هاتف د میرویس نیکه لېسې معاون یا لا مدیر ؤ. غرمه د رخصتۍ پر وخت چي زه له کوټې څخه راووتم د یوه کښته صنف د هلکانو په ټل کښېوتم. هاتف صاحب و موږ ټولو ته وویل: "تاسي و اداري ته ولاړ سئ!" زه هم ورسره ولاړم. د چارلي چاپلین کانه راوسوه چي د کمونیستانو په ټل کي ئې نیولئ ؤ. مدیر صاحب د هلکانو په وهلو پیل وکړ. نو دوی به یوه پلا یو لاس ورته نیولئ ؤ او بیا به ئې بل لاس ورته ونیوئ، خو نورمحمد تر پایه یو لاس ورته نیولئ ؤ. څنگه چي دی سپین پوستئ ؤ، نو ئې مخ تک سور سو.

کله چي پر ما روڼ راغلئ، ما ورته وویل: زه نه پوهېږم چي زه ولي او پر څه باندي وهل کېږم؟ هاتف صاحب راته وویل: آنو ته ولاړ سه!

په گانده (سبا) داسي څه نهه بجې مهال احمد اخوندزاده راغلئ او سیده و مدیریت ته ورغلئ. هورې د سیټانو له پای یا څنگه سره پر دوو تلو کښېناستئ. معاون هاتف صاحب دی وپوښتېدئ: "اخوندزاده صاحب، څنگه راغلئ یې؟"

ده ورته وویل: "پرون مو زما ورور نورمحمد لگاو کړئ دئ".

هو! دوی بېباکي او لچري کوله.

"زه د دې له پاره راغلئ نه یم چي ولي دي لگاو کړئ دئ. زما پوښتنه دا ده چي آخ خو به ئې کښلئ نه وي؟"

هاتف صاحب ورته وویل: یئه، آخ ئې کښلئ نه دئ".

دی هم ولاړ سو، ووتئ او بیرته ولاړئ.

بله پلا نورمحمد د اوز نورو شاگردانو سره و لندن ته د لوړو زده کړو له پاره تلئ. احمد اخوندزاده هم دمخه بنې له پاره له کندهار څخه و کابل ته راغلئ ؤ. په هوائي میدان کښي د انگلستان کلتوري اتاشه د دوی د ټکټانو، وېزو، او داسي نورو چارو په سمون بوخت ؤ، په یوه ترڅ کښي ئې له نورمحمد څخه پوښتنه وکړه چي ته څنگه د افغانستان یوه کلتوري یا ثقافتي نخښه له ځانه سره لرې چي په انگلستان کښي ئې د افغانستان ښکارندوینه کړې وي؟ ده ورته وویل چي داسي هیڅ شی له ځانه سره نه لري. د هغه پېچه پر سر وه. له خپله سره څخه ئې پېچه واخیسته او و ده ته ئې ور پر سر کړه او نور هم د دوی په چارو پسې سو. هغه اوز پلاوي لوړ او کښته ولاړئ. هره پلا به د دوی په نژدو کښي یوې یا بلي خوا ته تېرېدئ او د احمد اخوندزاده هم پکښي سترگه وه. دی چي ئې اوز واري ایسته دوري ولیدئ، نو ئې وویل: "یوه پېچه ئې ورکړه، اوس به نو سل واري ایسته دوري درته تېر سي چي ما خو نو پېچه ورکړې ده!"

دغسي یو راز د سیده او ناسیده حرکاتو ذهنیت په ټولنه کښي ؤ چي ناوړه عکس العملونه ئې تولیدول. زه به د اوز سیده غرضي اعمالو یادونه هم وکم. پر مځکه باندي پر پټو کښې ناستل او د ولاړېدو په حالت کښي د پټو ټکوهل د ټک وهلو یا چیلینچ مفهوم لاره. دغسي هم یو راز مصنوعي ټوخېدل، یا و چا ته برگ – برگ کتل، یا د چا مخي ته کوږ ووږ تېرېدل، د خار رسولو په مانا تلقي کېدل او

سمدلاسه سیده غبرګون ورښکاره کېدئ چي نتیجه به ئې ډېر کله جنګ وه. ښه - ښه ځوانان دغسي پر نه څه باندي ځله وژل سوي دي. دغو کسانو په خپلو منځو کښې جنګونه سره کول. په بل چا ئې کار نه لاره. دوی د ټولني یو قشر ؤ. دوی د خپل نفوذ ساحه لرله. د بل و ساحې ته نه ورتېرېدل.

یوه شپه ښامنی مهال، د اتو – نهو بجو تر منځ به ؤ چي د ښکارپر دروازې یا بازار یوه ډله ځوانان یا پایلوچان په کابل دروازه کښې تېر سول، ټیم ئې ټکاوه او له دباندي لاري څخه بیرته و ښکارپر دروازې ته تلل. د دوی تېرېدني په کابل دروازه کښې ځیني ځوانان بوږرګي کړل. لومړی کس شین عبدالکریم د کارېزو د نری لاري له خوا څخه و مخې ته ورولوېدئ. دء سدری وکښه او د سړک په منځ کښې و مخي ته ورته ودرېدئ. دوی ئې غوندي ودرول او ورته ئې وویل: ولي راغلي یاست، په ډله تېرېږئ او ټیم هم ټکوئ، هر څه چي مو په زړء کښې دي، راځئ! رادمخه سئ!

له هغوی سره څوک نامي نه ؤ، دوی ټول پایلوچان ول. دوی غوندي ځای پر ځای ودرېدل. ویل ئې موږ د ساعت تېري له پاره راوتلي یو، و چا ته آزار نه ور رسوو. که ستاسي خوا بدېږي، نه ټیم ټکووا و نه بله پلا پر دې خوا راتېرېږو.

په دغه ترځ کښې چي عبدالکریم یوازي په لار کښې ورته ولاړ ؤ او ورسره ږغېدئ د کابل دروازې نور کسان چي ډېری ئې پایلوچان نه ول، خو جنګیان ول، د سړک د یوې خوا او بلي خوا څخه، د څه ګز لوړو دېوالو څخه چي د مامتو (محوطو) و خوا ته ول و سړک ته تر ورواوښتل. دوی که څه هم د سړک د یوې او بلي خوا پر پلوانو باندي ودرېدل، خو د ښکارپر دروازې د پایلوچانو خپه تر مخه لا مړء سوي ول. دوی ویل: موږ د جنګ له پاره راغلي نه یو. نه ټیم ټکوو او نه بله پلا راځو.

شین عبدالکریم هم لار ورایله کړه او دوی ئې پرېښوول چي ولاړ سي. دی ځکه شین نومېدئ چي سترګي ئې شنې وې. له اوږېدو څخه ئې بدن په چاړو ټوکر ټوکر ؤ. دی سم عادي سړی ؤ. نه ئې غټه لنګوټه تړله، نه پایلوچ ؤ. له بده مرغه یوه ورځ دی د خپل سماوري دکان چي د کابل دروازې د کلاپسیل په خوله کښې ؤ، ناست ؤ او لرګي ئې ماتول. په دغه ترځ کښې یو رښکی بجیلکه، شاګل، د نېکو نانوای مشر زوی، چي پایلوچ ؤ ورته راغلئ او ورته ئې وویل چي: د دء هلک د پیرو له خوا څخه بېوول سوئ دئ. هغه هلک خواره کي د شاګل لغړي له لاسه څخه د پیرو و ډلي ته پناه وروړې وه. شین عبدالکریم هم سم دلاسه تېښه ورسره واخسته او ورسره ولاړئ. پیرو له خپلي ډلي سره تل د کاکړو شاه برج دباندي په مامتو کښې ؤ او د ورځي له خوا به ډېر کله هورې ؤ. شین عبدالکریم په پیرو پسي وروځغستل چي د تېښې وارئ ئې پر کړئ وي. پیرو پر ورور باندي ږغ وکړ، هله اکبره! مړ ئې کړم. اکبر هم سمدلاسه د توپکچې ټک پر وکړ. شین عبدالکریم ووژل سو او رښکی بجیلکه شاګل په ځغاسته ځني وتښتېدئ. شین عبدالکریم به ویل: چاړو وژلئ نه یم، دېوال راباندي نړېدلئ دئ، وژلئ ئې نه یم، ل دغي توپکچې څخه مي تراه کېږي چي دغه مي وژني او هم ئې وواژء.

له نامیانو څخه بل حاجي عبداللطیف ؤ. دء په ځواني کښې جنګ کړئ ؤ او سره له وهلو ټکولو ئې اقرار کړئ نه ؤ. تر ډېرو کلونو بند وروسته، دی د ښار د پایلوچانو په منځ کښې د روغي جوړي قاضي یا نامي منځګړئ ؤ. د ښار پایلوچانو ئې مراعات ساتئ او د دء په خوله ئې کول. دی د فهم او مصالحت خاوند سړی ؤ. ښه حوصله ئې لرله. موږ هم په کندهار او په کابل

کښي زموږ کره سره کښېنستلي یو او پر مسایلو سره ږغېدلي یو. دء کوښښ کاوه چي کله چا جنګ کړئ وي، لومړی ئې شخړه و حکومت ته راجع سوې نه وي. دء به د دوی تر منځ روغه – جوړه کوله او و خوږ کړې سوي کس ته ئې ملهم بها ځني وراخیسته. کله چي زما کشري ورور جنګ کړئ ؤ. دء تر منځ روغه وکړه. موږ له دغه ځایه څخه سره وپېژندل. که به یو و حکومت ته عارض سوئ ؤ، په حکومت کښي ئې هم دء دعوه تر قاضي او والي پوري ورسره شاربله. آن.دا چي د کندهار په حکومت کښي څه، بل لا ئې په کابل کښي هم تر پایه پوري پالله او پای ته ئې رسوله.

حاجي لطیف د سپیان جنګي د میدان حکم او قاضي هم ؤ. د دء و غوښتني ته نورو غوږ نیوئ. زه به یوه د سترګو لیدلې پېښه دربیان کم. هغه دا چي کله به ده دوه سپیان سره جوړه کړه او خاوندانو به ئې هم یو د بل سپی وکوت چي سره ساري دي که نه. تر موافقې وروسته چي به ئې سره وجنګول، یو یا بل ئې تر ماتېدلو پوري نه پرېښاوه. کله چي به یوه سپي بل سپی غوځار کړ، دء ئې د سره بېلولو او ژغورلو کوښښ کاوه. کاکو ابراهیم جان ډېر لوی خډل سپی لاره. دغه سپی ئې د بل همدغسي سپي سره ورجوړه کړ. خاوندانو ئې موافقه سره وکړه. د جنګېدلو پر مهال هغه بل سپي د کاکو ابراهیم جان سپی تر څټ یا مغزي ونیوی او هیڅ ئې نه ایله کاوه. مګر غوځار ئې نه کړای سوای که ئې څه هم ډېر څنډل ورکړي ول. حاجي لطیف د مقابلي خوا د سپي و خاوند ته وویل چي دی هم ستا غوندي شوقي سړی دئ، ښه به دا وي چي سپي ئې ځني ور وژغورئ. هغوی هم د دء خبره ومنله او سپیان ئې ځله ګوښي کړل. په دې ترځ کښي کاکو ابراهیم جان خپل سپی پر وراېله کړ او دغه پلا ئې هغه بل سپي هغسي ټینګ ونیوئ. له هغه سپي سره نور کسان هم ول او چاړې ئې راوکښې. زما یو خپل، ولي جان، د ضابط ستار له خوا څخه په یوه همدغسي پېښه کښي وژل سوئ ؤ. حاجي لطیف او ځینو نورو کوښښ وکړ چي جنګ پکښي سوئ نه وي او سپیان ئې ځله ګوښي کړل. تر دغه وروسته حالت آرام سو. که نه ګانه حاجي لطیف د دوی په منځ کښي نه وای، د دوی تر منځ به هم هغسي پېښه سوې وای لکه ما چي ئې ترمخه یادوءنه وکړه -دولي جان او ضابط ستار.

لکه حاجي لطیف چي د سپیان جنګي په میدان کښي حکم یا قاضي ؤ. دغسي هم دی د متخاصمو یا دښمنو خواوو صلح راوستونکئ صالح سړی هم ؤ. دی معقول سړی ؤ او هیڅ نه عصباني کېدئ. ما ئې په بېلابېلو حالاتو کښي خښم لیدلئ نه دئ.

دء یوازي د دوو دښمنو جنګیانو تر منځ روغه جوړه نه کوله. بل لا ئې د رئیسانو، قومندانانو، قاضیانو، او والیانو سره هم معقول او محترمانه مناسبات پالل. په کندهار کښي موږ اوز پلاوي سره لیدلي ول. دی له یوء ځوان سره و کابل ته راغلئ ؤ. زموږ کره سره ناست وو. ما له دء څخه پوښتنه و نه کړه چي څنګه راغلئ دئ. د عدلیه وزارت سره کار لري که ئې په داخله وزارت کښي کار بند دئ یا په څه او څنګه کار پسي راغلئ دئ. ما له دء څخه پوښتنه وکړه چي کوږ څنګه نیول کېږي؟ خلګ وایي کله چي څوک د کاږء په غار ورننوزي نو ورته وایي چي: "کوږ نه دئ، لوټه ده". کوږ فکر کوي چي د نبي امت درواغ نه وایي. نو دی رشتیا هم کوږ نه دئ لوټه دئ، نو کوږ نیوونکئ د کاږء خوله وروتړي".

حاجي لطیف راته وویل چي دغه چټي ویل دي. زه به د کاږء نیولو بیان درته وکم، ته به د ډیموکراسۍ بیان راته کوې چي ډیموکراسي څه شي ده. ما هم ورسره ومنله.

د‌ء داسي راته وويل:

هر څوک کوړ نيولای نه سي. يو ماهر او غښتلئ سړی دغه کار کوي. دی له درو – څلورو نورو کسانو سره چي هغه هم تکړه سپيان ساتونکي وي، ورسره ځي. دی کوسی Kosey اغوندي يا پنډه چوخه اغوندي او له لکړي سره چي سر ئې دوښاخه وي، د کاړ‌ء غار ته ورننوزي. کوړ چي مخ پر ورواړوي، دی ئې هغه دوښاخه لکړه په غاړه کښې وربنده کي يا ورونجتي چي غوټه پر وهلای نه سي. دغه کس د کاړ‌ء د شا دواړي غبرګي پښې خورا ټينګي په هغه واښ سره ورتړي چي يو سر ئې له د‌ء ځخه وي او بل سر ئې د دباندي خلګو څخه وي. کله چي په غار کښې دننه کس د کاړ‌ء پښې ټينګي ورتړلي وي، نو پر دباندي خلګو رغ وکړي چي: "درکش ئې کئ!"

هغوی ئې سوکه – سوکه ورکشوي. کوړ نيوونکي چي په غاړه کښې دوښاخه وربنده کړې وي، د کاړ‌ء خوله وروتړي او په جوال ئې ننه باسي. د جوال خوله پسي وتړي او يوئې سي.

زء کوچنی وم و موسراباد ته تللئ وم او له هغه ځايه څخه و توغي ته ولاړم. په توغي کښې زمان خان و کاړ‌ء ته دوه خندکيان ورايله کړي ول. کوړ يوې او بلي خوا ته په واښ تړلئ هم ؤ چي د واښ يو او بل سر د دوو کسانو په لاسونو کښې هم ؤ. کله چي د د‌ء دواړه خندکيان له کاړ‌ء سره په جنګ ول، په دغه ترڅ کښې د کاړ‌ء خوله وپرانيستله سوه او دواړه خندکيان ئې په يوه آن کښې ووژل.

په ښار کښې ئې هم يو کوړ تر لويې سودې لاندي کړئ ؤ. له دغه سره ئې هم يو لوی خډل سپی وجنګاوء. خو تر لږ څه جنګ وروسته ئې هغه لوی سپی ځني وګوابنئ. دا چي د کاړ‌ء خوله به هرومرو تړلې وه، خو ما له ليري څخه ليدلای نه سوای. لکه کوړ چي به له يوې او بلي خوا څخه په دوو واښونو سره تړلئ ؤ، دغسي به ئې لوی – لوی خډل سپيان هم په دوو واښونو سره تړلي ول او داسي زورور ول چي دواړ‌ء ګرځوونکي کسان به ئې ورسره ځغلول.

تر دغه بيان وروسته حاجي لطيف راته وويل چي اوس نو ته راته ووايه چي ډيموکراسي څه شي ده؟ د‌ء ويل چي دی له ډاکټر انس سره ناست ؤ کله چي هغه د کندهار والي ؤ. په دغه ترڅ کښې ئې اوز کسان ملايان راوستل چي و لاسونو ته ئې ولچکان وراچولي ول او پښو ته ئې بېړۍ يا زولنې وراچولي وې.

تر دوی وروسته بله ډله ملايان پسي راغلل. وړاندنيانو ويل: موږ وايو چي ښځي او نارينه دي و زيارتونو ته نه ځي. هغوی چي ژوندي ول، څوک ول او څه ئې کړي دي. که به تاسي په دوی سره جوړېږئ خو دوی په خپله مړ‌ء دي. تاسي د دوی خاورې خورئ او خوردې ئې بولئ، تاسي د دوی زينارونه په غاړه کوئ او توبندونه ئې بولئ. دغه شرک دئ. ولي و خدای ته د خپل جوړښت دعا او درننګونه نه کوئ چي مړ‌ء درننګوئ. تاسي تعذيذونه په ځان ځړوئ، په دغو کښې د خدای نومونه دي. له دغو سره خرابو او چټلو ځايونو ته ځئ. تاسي په هر راز حالت کښې په غاړه کړي وي يا مو په ځان اوز تعويذونه ځړولي وي.

د دغو وهابي علماؤ په جواب کي سنتي علماؤ ويل چي کرامت د اولياؤ حق دئ. تاسي د وليانو له کرامت څخه ناګاره کېږئ. اولياء که مړ‌ء دي روحونه خو ئې مړه نه دي. ستاسي ناګاره کېدل داسي مانا نه لري چي څوک دي په مدينه منوره کي د عالمي پياوړي، سرور کائنات و مزار ته هم نه ورځي؟

يوې ډلي ملايانو چي د بلي ډلي ملايانو پر ضد باندي ډېر يو راز او بل راز احاديث بيان کړي ول، د کندهار والي، ډاکټر انس امر وکړ او

د محکمې ورورې وثیقه ئې ورامضاء کړه چې ولچک او زولانه کړل سوي وهابي ملایان دي بندیان کړل سي.

حاجي عبداللطیف چې دغه راز هر څه لیدلي او اورېدلي ول، و ډاکټر انس، د کندهار والي ته ئې ویلي ول یا ئې پوښتېدلئ ؤ، چې دا وهابیان ملایان خو پر حق ول. دوی سم رغېدل، نو تاسي ولي دوی بندیان کړل؟ دء ویل چې ډاکټر انس ورته وویل: اوس ډیموکراسي ده. وهابیان لږه نیان ول او سنتیان ملایان ډېره نیان ول. په ډیموکراسي کښې ئې ډېره نیان ګټي او لږنیان ئې بایلي. نو دء ویل څنګه چې په افغانستان کښې ډېره نیان ناپوهان یا جاهلان دي او لږه نیانو ئې زدکړي کړي دي نو په انتخاباتو کښې جاهلان ئې له پوهانو څخه انتخابات ګټي.

هو، ته ښه وایې. خو لږه نیانو پوهانو و جاهلانو ته بنده وراچولې ده. دوی اساسي قانون ورته جوړ کړئ دئ، چې د هغه له مخې څخه په انتخاباتو کښې هغه کسان ځانونه کاندیدولای سي چې مکتب یا ښوویخ ئې دوولس صنفه بشپړ کړئ وي، که ئې عصري درسونه یا مضامین زده کړي نه وي، دی و انتخاباتو ته د نوماند په حیث درېدالی نه سي.

په کندهار ښار کښې یو بل نامي لوچک چې د څه یادوني وړ دئ هغه شېرو ؤ. دوی څلور ورونه ول. یو فضلو ئې پر سد ؤ، نور درې سره باوله ول. فضلو ئې و کابل دروازې ته نژدې د زرغونو یا تازه سبزیجاتو او مېوو دکان کاوء. پسې ورور محمدعظیم ئې ایله ګرده ؤ. شېرو ئې جنګ کړی او تر بند وروسته لوی لوچک یا پایلوچ ؤ، څلرم ورور ئې خروار ؤ. یوه پلا ئې څوک په چاړه وواهه بندي سو. تر بند وروسته ئې مړئ وکړ، ښایي قصاص سوئ به ؤ، د دوی باوله توب به موروثي ؤ.

شېرو تر بند وروسته نامي پایلوچ ؤ. په دء به هم ځوانکیان پایلوچان په ډله پسې ول. یوه ورځ له ډلي سره د آغا کارېز و خوا ته ور روان ؤ، د دء یو غورس دولښتي سوټی په لاس کښې ؤ. له ډېري مستۍ څخه به کوږ ووږ تلئ. دی چې به اوز ګامونه ولاړئ بیا به ئې پر خپلي ورپسې ډلي باندي مخ ورواړاوء. و هر یوء ته چې به ورنژدې سوء، هغه به ئې دولښتي په متار وواهه. له هغه څخه به چیغه وخته. دی به بیا دمخه او نور په پسې ول. پس له اوز ګامه څخه به ئې مخ ور واړاوء. ورپسې ډلي به ئې یوې او بلې خوا ته ځني وځغستل. و دء ته چې به هر څوک ورنژدې ؤ، هغه به ئې یو متار واهه. د هغه به بیا چغې بغې پورته سوې. ما به په زړه کښې له ځانه سره ویل چې نو د ګوره زامنو ولي ورپسې یاست!

شېرو لونګ وواهه او د کارېز و سوبې ته ورننووت هورې به ئې په سوبه کښې هم نیمګړې غزلي ویلې او هم به ئې غورې وهلې. دمخه چې به پر لاري تلئ هم به ئې غورې وهلې.

یوه ورځ ئې د سهار له خوا څخه نیمه ورځ د کابل دروازې څخه تر حمام دهنې پوري د وژني او ژوبلې دهشت جوړ کړ. چا دکانونه تړلي او چا پرانیستلي پرې ایښي ول. شېرو توره تر سر ګرځوله او غورې ئې وهلې. کله چې به شېرو د بازار و یوء او بل سر ته ولاړئ، خلګو مړي او ژوبل سوي له بازاره څخه ایستل. په کابل بازار کښې څوک نه لیدل کېدئ. بازار تش تور ؤ. پولیسان چې بې وسلو ول، په خپلو کوټو ننوتلي ول. د غرمې و خوا ته له عسکري فرقې څخه سپاهیان د وسلو سره راورسېدل. د توپکانو په اوز ټکانو سره ئې شېرو غوځار کړ. سوکه – سوکه بازار و عادي حالت ته وروګرځېدئ. نژدې او لیري خلګ پر آرامه سول. ښایي د ځینو نورو پایلوچانو به پانیات

سوی هم وي.

## پایلامه:

له یوې خوا څخه عمومي روحیه د امن ؤ سلم وه. چا په چا کار نه لاره. مګر سیال ئې ؤ. سیالانو هم په هر قشر کښې یو له بله سره په خپله ورشو یا ساحه کښې سیالي سره کوله. پر دغو به ښایي دیني، ثقافتي، کلتوري، اغېز ؤ. د مشرانو او سپېدانو ډېر مراعات ساتل کېدئ. و دوی ته ئې په درنه سترګه کتل.

د وړاندنۍ ثقافتي پېښناولې له څنګه سره بله اغېزمنه پېښناوله د درو پیاوړ او تکړه شخصیتونو حکومتوالي وه. دوی مستبد اشخاص نه ول، بل لا مدبر شخصیتونه ول. دوی تکړه اداره لرله، یو ئې لومړنی شخصیت تکړه او مدبر صدراعظم محمدداؤد ؤ. دء د افغانستان له پاره ډېر له ویاړه ډک کارونه کړي دي. د اساسي قانون جوړول، د ښځو آزادي، له فیوډالانو څخه حکومت و تحصیل کړه سوو ځوانانو ته ورسپارل، د افغانستان سړکان ډامبرول، و کابل پوهنتون ته نوې عصري ودانۍ ورجوړول، په پوهنتون کښې د نجونو او هلکانو مشترک تحصیل او نور ډېر څه.

په کندهار کښې د تکړه شخصیت غني ګردېزي د تنظیمه رئیس په شان مقرر کول. دغه سړي په لوی کندهار کښې نهایت ډېر کارونه وکړل. سرغنه محمدداؤد نوئ ښار ودان کړئ دئ چې له هرات دروازې یا شهیدانو چوک څخه د نوي ښار په منځ کښې ورغزېدونئ سړک باید د دغه ستر شخصیت په نامه سره، داؤدي لارا نومول سوئ وي. له دغه سره په څنګ او موازات کښې غبرګ سړک او دواړو خواوو ته کوټۍ ئې هم د هندو چوک یا ګاندهي چوک پوري د دء له خوا څخه ودانې سوي دي، او هم باید د غني ګردېزي په نامه سره دغه لارا او خوا نومول سوې وي. له مدد چوک څخه تر دوراهي پوري سړک او ودانۍ هم د غني ګردېزي له خوا څخه جوړې سوي دي. دا چې د لوی احمدشاه بابا زیارت ئې له څنګه سره دئ او هم د افغانستان دوهم مؤسس شخصیت دئ، نو دغه لارا باید تر دوراهي پوري احمدشاهي لارا ونومول سي. سرغنه غني ګردېزي د منزل باغ جاده او د دغې و دواړو خواوو ته کوټۍ ده وداني کړي دي. څنګه چې دغه زمان زابل، روزګان، او هیلمند ولایتونه د لوی کندهار برخې وې، نو ئې حکومتي ودانۍ هم غني ګردېزي ورجوړې کړې وې.

زه د میرویس نیکه لېسې په کښته صفنونو کښې وم چې د لوی کندهار تنظیمه رئیس، عسکري فرقه مشر او نائب الحکومه یا والي دوه واري و میرویس لېسې ته راغلئ. دء هره پلا و متعلمینو ته اوږده وینا وکړه. د دء له لومړنۍ وینا څخه زما یوه جمله په یاد ده او ترمخه مي اوز پلاوي هم کښلې ده. دء وویل: "کندهاریانو، تاسي سړي نه لرئ!"

ما له ځانه سره وویل: ار، اوهو، څخته درواغجن دئ. وایي تاسي سړیان نه لرئ. هغه دئ بازار په ډک دئ. ږیري لري، او لنګوټې ئې لا هم تړلي دي. زه هغه زمان د وګړي او سړي په توپیر نه پوهېدم. رشتیا هم، کندهار هغه زمان سړیان نه لرل او نن ئې هم نه لري. خو هیڅوک نه وایي یا لا هیڅ شلومبو والا نه وایي چې: "د دء د غړکي خوند بد دئ!". په پخوا کښې چې موټران نه ول. نو به کلیوال پر اوښانو، خرونو او اسانو باندي و ښار ته راتلل. دوی به ډېر کله د پسونو او اوښانو د پچو بارونه ورسره راوړل. هغه به ئې په کورونو کښې د سوځنګ له پاره خرڅولې او د خپلې اړتیا وړ شیان به ئې پیرودل. دوی غنم هم د خرڅلاو له پاره راوړل.

د ښاروان غني ګردېزي له ډېرو کارونو څخه یو دا هم ؤ، چې د کندهار ښار څخه ئې و

يوې او بلې خوا ته د سړکانو پر دواړو غاړو باندې تر سپين بولدکه پورې، تر ښار سپاه يا ښار صفا پورې او د کشک نخود (کوشک ناخدا) په ها خوا دوراهې پورې ناجوګان کېښنول او هم ئې وده وکړه. خو د طالبانو د اقتدار په زمانه کښې د شپږ کلنې وچکالۍ له اسيته څخه هغه لوى سوي ناجوګان وچ سول، او خلګو د سوځلو له پاره وکښل او يووړل.

سرغنه غني ګردېزي په هديرو کښې هم ناجوګان کښېښولي ول. سرغنه محمداکبر امنيه قوموندان، ښګ حبيب الله وروغوښتئ. نو په قومندانى کښې چا پوښتنه ځنى کړې وه چي ښګه، ته څنګه راغلئ يې؟

دى ورته ويلي وه: دغه شين سري راغوښتئ يم. مراد ئې امنيه قوموندان سرغنه محمداکبر ؤ.

قوموندان ورته ويلي وه: ښګه! ستاسي چرسيانو خو دغه زرغونه بوټي او ګلان ډېر خوښ دي. نو په هديرو کښې د ناجوګانو ساتنه کوئ چي چا کښلي نه وي.

هو، باداره! خود به ئې ساتو.

په کندهار کښې د امن او امانۍ جوړولو درېيم لوى شخصيت سرغنه محمداکبر د کندهار ښار امنيه قوموندان ؤ. دى هم دروند او پرتمين سړى ؤ. د دۀ په زمانه کښې او هم تر ده اوز زرونه کلونه دمخه پښتنو ډېر لوى – لوى ارت پرتګونه اغوستل. کله چي به په دوى کښې څوک پر بايسکل سپور سو، نو به ئې د پرتاګه خښتګ پر کنجوغه ورسره پروت ؤ. تر دغه پورې يوه ټوکه راپه ياد سوه چي له خښتګ سره اړوند ده.

وايي چي يو چادي زوم د خواښې کره تلئ. دۀ په ترمخنيو ورځو کښې دوګزه الوان پيرودلئ ؤ. يو ګز ئې د دۀ و پرتاګه ته خښتګ وراچولئ ؤ. د خواښې کره پر لارې چيرې پر ميچازو کښېښستلئ ؤ. بل پانياتي په پسې ؤ، دغه الوان ئې په بياتي سره ځنى غچى کړئ ؤ. دى چي د خواښې کره ورغلئ ؤ، نو ئې لمن پر ورنو باندې اچولې او ارت کښېښستلى ؤ. خواښې به د سترګو تر کونجانو يوه يا دوې پلاوې ورته کتلې وه. دۀ غوښته چي ښه ئې ورته ځير کي. ورته ئې ويلي ول: "خواښې، ښه ورته وګوره! يو ګز دغه دئ او يو ګز لا کور دئ".

هغه زمان چي ځينو خلګو لوى – لوى پرتوګونه اغوستل، او خښتګ به ئې يو – يو نيم ګز ؤ، او پايلوچانو به اوږدې شملې کولې چي تر پړکيانو پورې به ئې رسېدلې. نو مازيګر مهال چي به قومندان د دفتر له خوا څخه پر پښو باندې و کور ته ور روان ؤ. که به ئې په کوڅه کښې لوى خښتګوال يا اوږده شمله والا وليدئ. هغه به ئې وروګرځاوۀ او ورته به ئې وويل: ولي دي خښتګ دونده لوى کړئ دئ؟ يا دي ولي شمله دونده اوږده ده؟ بله ورځ به ئې په بياتي سره درپړې کم چي يو ئې سې او و مور ته ئې ورپوړنى کې.

دا هم بايد وويل سي چي ناميانو نه غټې خرتې ترلې، نه ئې اوږدې شملې کولې او نه ئې ارت خښتګونه کول. ډېر کليوالو ارت خښتګونه کول او د پايلوچانو به شملې تر پړکي پورې رسېدلې. ناميان لڅي پښې نه ګرځېدل، خو پايلوچان لڅې پښې ګرځېدل. دوى ډېره نيان خواران او مسکينان ول.

زه چي د شل کلنۍ په عمر د ۱۳۳۷ش په پاى کښې د کندهار ښار څخه تللئ وم تر څه ۴۵ کالو غياب وروسته ورته ورستون سوم هر څه هغه په هغه نه ول. نه هغه ناميان ول او نه هم هغه پايلوچان ول. په هر نامي به لس، پنځلس يا لا شل کسان پسې ول، اول چي ديموکراسي سوې ده نو لړه نيان ئې بايلي او ډېره نيان ئې ګټي نور خښم او زور يا زړه ورتوب

او ټينګوالئ نه چلېږي بل لا ئې پر ځای باندي ملګر تيا چلېږي.

**وحشت:**

وحشت خو هر څه سر تر پايه پوري ؤ، او د ټولو وحشتونو مورينه بې کاري وه. کسب ؤ کار نه ؤ، تعليمات هم محدود ول او هم خلګو په زامنو مکتب يا ښوويځ نه وايه. په نتيجه کښي ئې د هلکانو له پاره يا د کوڅې ژوند ؤ، يا د لويانو له پاره تر کلا يا ښار دباندي د هديرو يا د زرغونو مځکو ژوند ؤ چي هورې پوليسان پسي وروتلای نه سوای.

د کوڅې په ژوندانه کښي د دوو هلکانو سره سيالي وه. دوی غوښتل چي په وهلو کښي سره لوېدلي وي. دوی ويلي وه چي زه تا له دغي وني څخه په دوو لښتو وهلو سره راکښته کولای سم. هغه بل ورته وويل: ولاکه مي ستا پلار لا راکښته کي. هغه ورته ويل چي زما پلار خو ايسته پرېږده د هغه زوی دي راکښته کولای سي.

دغه يوه ونه وه او دی هم وروختئ. هغه سيال ئې هم پسي وروختئ. هورې ئې يوه لښته ورته پرې کړه او دی ئې يوه ښه تونده لښته تود کړ. بيرته ځني راکښته سو او ورته ئې وويل چي بله لښته دي سبا وهم. په ونه کښي ناست هلک هېښ پېښ ناست او خر غوندي ئې يو او بل ته کتل.

يا به دوه سيالان هلکان په لښتو وهلو کښي سره ولوېدل څو دا معلومه سوې وي چي په دوی دوو کښي څوک ټينګ دئ. يوء به هم پښې پورته کړي وې او بل هم. دوی به پر پښو باندي په لښتو سره وهل کېدل. هر يوء که پښې ښورولي وای يا تاو تاو سوی وای هغه بايللې وه. دی بګېل ؤ او هغه بل سارک پېژندل کېدئ. دوی پايلوچان نه ول. دوی د کوڅې عادي هلکان ول.

د پايلوچانو تر منځ هم دغسي احمقانه سيالی وې. دوی به بيا پر لڅه شا باندي اورونه سره بلول. اورېدلي مي دي او ليدلي مي نه دي چي د چا پر شا باندي ئې اور بل کړئ ؤ او پر دغه اور باندي ئې د چرسو تلی ورتاوواوء (تاو کاوء).

ښاغلي جهاني د مرحوم غبار په استناد کښلي دي: "کاکه ګانو يوه بل [يو ؤ بل] ته شيربچه ويل او کله کله به ئې د مقاومت د ښودلو له پاره ځانونه د آسونو په څېر نالول" (افغانستان در مسير تاريخ: ۹۱ مخ).

په اخستلي عبارت پسې ښاغلي جهاني داسي کښلي دي:

لومړی خو دا غيرممکنه خبره ده، ځکه چي سړی نال کړې د تل له پاره ګوډېږي او يا ښايي د ډېر درد له لاسه ساه ورکړي. که دا خبره د يوه ليري حقيقت په حيث ومنو نو دا څه کمال دئ؟ دا له انسانيت او انساني کرامت سره کله اړخ لګوي؟ او دغه راز يوه غيرانساني کارنامه کله په افتخار ارزي" (کندهار مجله: ٦ مخ).

ما د کندهار ښار له لډرانو څخه اورېدلي دي، دا چي نور عموميت ئې هم لاړء که نه، نور نه پوهېږم. د لډرو دکان ته چي به پيرودونکئ ورغلئ، دی په پوهېدئ چي څه رانيسي که ئې و ځان ته نرخ معلوموي. هغه چي تش به ئې نرخ معلوماوء، لډر به هغه شی ارزانه وربيع کړ. بيا به ئې وروسته وويل چي ډېره ئې پر کښېښوول. که به ئې څه ګران پر خرڅ کړ، نو به ئې ويل چي نال (نعل) کړئ ئې دئ. يا که به ئې کم کيفيته څه ګران پر تېر کړای سوای، هم ئې ويل چي لږ يا ډېر ئې نال کړئ دئ. ښايي دغه به دا مانا لرله چي خر کړئ ئې دئ. دا ځکه چي نالول يوازي له خرو او اسانو سره اړه لرل. که په عربي مانا سره واخستل سي مانا ګاولي ئې ور په پښو کړي دي.

نور بيا...





لیکوال: استاد محمدمعصوم هوتک/کاناډا

# د نواب محبت خان پښتو دېوان

سریزه، سمون او لغتنامه: سرمحقق زلمی هیوادمل
خپرووںکی: د افغانستان د علومو اکاډیمي ـ د ژبو او ادبیاتو مرکز ـ د پښتو ادبیاتو انستیتوت
اهداء: کاندیداکاډمیسن پوهاندمیرحسین شاه ته
د چاپ کال: ۱۳۸۴ هـ ش -۲۰۰۵ م
د چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه
د چاپ ځای: د پوهني مطبعه -کابل
د کمپوز د چارو متصدي: محمدجاوید امان

دا دېوان د نواب محبت خان د دوه سوم تلین (۱۲۲۳ - ۱۴۲۳هـ ق) په مناسبت د بریټیش لایبرېرۍ د یوازنۍ موجودي نسخې له مخي تهیه سوی او خپور سوی دئ. د خطي نسخې کاپي ئې په کابل کي د بریتانیا سفارت له لاري ښاغلي سرمحقق هیوادمل ته د دوکتور فاروق وردگ او کاوون کاکړ په همکاري رسېدلې وه. وایي چي د نواب محبت خان دېوان په هندي منابعو کي "دیوان ریخته" بلل سوی دئ[1].

زموږ تر بحث لاندي چاپي متن په سر کي تر اهداء وروسته د سر څېړونکي مرستیال نصرالله ناصر په قلم دوه مخه لیکنه راغلې ده چي سرلیک ئې "مننه او کورودانی" دئ. ورپسې په ۶۴ مخونو کي سریزه او بیا فهرست (۲۴مخه) راځي. په فهرست کي د پاړکو د

[1] سریزه: "پنځه" مخ.

مطلع اول نیم بیتي د الفبې په ترتیب اوډل سوي دي. ښی خوا ته ئې د بیت نومره او کیڼ لورته ئې اړوند مخ ښوول سوی دئ. تر فهرست وروسته متن شروع کېږي (۳۸۳مخه) او ورپسې لغتنامه راځي (۲۰ مخه). په لغتنامه کي ئې لغتونه د غزلو د نومرو په اعتبار اوډلي دي.

د دېوان په سریزه کي د نواب محبت خان په باب په هند، پاکستان، ایران او افغانستان کي د پوهانو پر لیکنو بحث سوی دئ او په هغو کي د یو لړ تېروتنو یادونه سوې ده. د نواب محبت خان د ژوند او آثارو په باب دغه څېړنیز مطالب په خپل وخت کي ډېر ګټور تحقیق دئ.

لکه وړاندي چي مو وویل، د دېوان متن له یوې واحدي نسخې څخه برابر سوی دئ. د خطي نسخې لیکدود ئې ښوولی دئ[۲] او اوسني لیکدود ته د متن په راړولو کي ئې ښه پوره دقت کړی دئ. ځای ځای چي کومه غزل بېځایه سوې ده، په سریزه کي ئې اشاره ورته کړې ده. په "شپږڅلوېښت" مخ کي ئې اصل نسخه راپېژندلې ده او لیکلي ئې دي: "د دېوان دغه نسخه به غالباً د مؤلف پخپل خط وي دا نسخه ئې د۱۸۰۱ م کال د اکتوبر په لومړۍ ورځ سر ګور اوزلي ته اهداء کړې ده. د نسخې په پای کي د ګور اوزلي یادښت په انګرېزي ژبه راغلی او لاندي ترې په فارسي لیکل شوي دي: (دیوان محبت در زبان پشتو، تصنیف نواب صاحب مشفق کرم فرمانواب محبت خان، پسر نواب حافظ

[۲] شپږپنځوس مخ.

رحمت خان مرحوم از دست مصنف به این جانب مرحمت شد) رقیمه ګور اوزلي.

در نو لوستونکو ته دي معلومه وي چي د دغه پورتني یادابښت لیکونکی( Sir Gore Ouseley) سر ګور اوزلي (۱۷۷۰ ـ ۱۸۴۴ م) یو برتانوی ډیپلوماټ او ژبپوه وو چي د هندوستان په انګرېزي حکومت کي ئې په لکهنو کي ماموریت درلود. هورې ئې د اودهـ له پنځم نواب، نواب سعادت علیخان سره وپېژندل او سره ملګري او دوستان سول. (دغه سعادت علیخان د شجاع الدوله ترکمن زوی وو[۳]. د شجاع الدوله اصل نوم میرزا جلال الدین حیدر وو او کله چي د اودهـ نواب سو (۱۱۶۷ هـ ق) پر ځان ئې شجاع الدوله لقب کېښېښود. شجاع الدوله د پاني پت په تاریخي غزاکي د لوی احمدشاه بابا ملګری وو، خو وروسته له پښتنو سره د غدارۍ او له انګرېزانو سره د دوستۍ په وجه زموږ محققینو د (ناسیاله شجاع الدوله) په لقب یاد کړی دئ[۴]. د سعادت علیخان مقبره د لکهنو په قیصرباغ کي واقع او ښکلې دنګه ګومبته پر ولاړه ده.

سر ګور اوزلي په لکهنو کي یوه ماڼۍ ودانه کړه چي (دلکشا کوټۍ) ئې بلله. دغه دنګه ماڼۍ پنځوس کاله ولاړه وه او د لکهنو د خلکو د مشهور پاڅون پر وخت (۱۸۵۷ع) ورانه سوه. اوزلي په سانسکریټ، عربي او فارسي ژبو پوهېدی. دی په ۱۸۱۵ م کال د

[۳] وګ: حافظ الملک حافظ رحمت خان بړیڅی – د علامه رشاد لیکنه: ۸۴مخ.

[۴] وګ: د احمدشاهي شهنامې تعلیقات: ۶۱۰ مخ، ۱۳۸۷ل کال، کندهار.

هند، فارس او روسيې تر سفرونو وروسته بیرته انګلستان ته ستون او هورې د هغې تولني مشر (پریزیډېنټ) وټاکل سو چې د ختيځوژبو متون ئې خپرول. د دوی په کارونو کې یو هم د سعدي ګلستان دئ چې د فرانسیس ګلېډن له خوا ژباړل سوی وو.

د نواب محبت خان دغه اوسنی چاپي دېوان له یوې واحدې نسخې څخه په پوره دقت برابر سوی او په ټوله معنا د ډاډ وړ متن دئ. ما دغه متن کندهار ته د خپل سفر په وخت کي (۱۰ می ۲۰۱۲ع) په تلوار وکوت، ځکه په کندهار کي مي د سفر شپې پر پوره کېدو وې، خو په اطمینان سره ویلای سم چي د پخوانیو پښتو متونو د برابرولو په لړ کي دا یو مثالي متن دئ او نوو څېړونکو ته په کار ده چي د متن څېړني او متن برابرولو په وخت کي دغه متن د خپل کار له پاره د نمونې په توګه وټاکي. د دغه متن ښاغلي مرتب د سریزې په "اوه پنځوس" مخ کي کښلي دي چي: "که له ما د دې دېوان د سمون، تدوین او تحقیق په چارو کې څه تېروتنې شوې وي - چي ضرور به شوې وي - له لوستونکیو هیله لرم چې د مهربانۍ له مخې ما پرې خبر کړي". دغې پراخ نظرۍ ما (هوتک) ته جرئت راکړ چي دا څو یادوني له ښاغلي مرتب او نورو لوستونکو سره شریکي کړم.

په دغه متن کي د اصل ثبت ساتل سوی دئ او د کلماتو او لغتونو اوسنۍ بڼې ئې په حاشیو کي ښولي سوي دي. لکه: ښېې = ښېې، کیدم = کښېږدم (۳مخ) او نور.

دغې کې = که ئې، بې = به ئې (۹مخ)، مسجودې = مسجود ئې (۱۱مخ)، زرې = زر ئې (۲۴مخ) او نور دغه راز کلمې بالکل سمي ثبت سوي دي. په (۵مخ) کي چي (کی = که یې) لیکل سوی دئ ، ما ته چاپي تېروتني ایسي او باید (کې = که ئې) وای.

- په ۱۸ مخ کي (ودي سه = ودي سوځه) په زړه پوري ترکیب دئ چي اوس له محاورې څخه وتلی دئ. (ودي سه) یا (ودي سي) اوس د نواب محبت خان د لهجې (لوېدیځي لهجې) په ویونکو کي د (امکان دي ولري) په مفهوم کارېږي.

- په ۲۳ مخ کي (رسئی) که د (رسیي، رسئي) په شکل لیکل سوی وای، د شاعر د لهجې بشپړه نمایندګي به ئې کړې وای. په حاشیه کي چي ئې (رسوي) ورته کښلی دئ، بیخي سهي دئ. دغه راز توضیحات په ۵۲، ۵۳ مخونو کي هم سته چي ټول سهي دي.

-د ۴۰ مخ "زه په عشق دې ګرمومه دی په عشق ما ګرمئی" ته چي په حاشیه کي "ګرمئی = ګرموي" لیکل سوی دئ، سهي دئ. که (ګرمئی) د (ګرمیي، ګرمئي) په بڼه لیکل سوی وای، لا به ښه وای. مګر د مصرع په (دې، دی) کي زه یو څه ملاحظات لرم. په دغه غزل کي د شاعر مخاطب (دین داران، دنیاداران) دي او د هغو له پاره د جمع ضمیر باید راوړل سوی وای. د محبت خان په لهجه کي د جمع غائب ضمیر په محاوروي بڼه (دی = دوی) دئ او د لومړي توري (دال) په زوه ره کي تلفظ کېږي. که دغه مصرع په اوسنۍ بڼه ولیکل سي، باید چي داسي وي: "زه په عشق دوی ګرمومه دوی په عشق

ماگرموي) دا چي مرتب کوښښ کړی دئ مصرع د شاعرپه لهجه ثبت کاندي، بیخي پر ځای او معقوله خبره ده. خو که ئې "زه په عشق دی ګرمومه دی په عشق ماګرموي" ثبت کړی وای او په حاشیه کي ئې (دی = دوی) پر زیات کړی وای، تر ښو به لا ښه وای.

د۴۶ مخ د حاشیې (چرې) ته که یو څه شرحه ورکړه سوې وای او د (چرې = چیري، چیرې) په ښه لیکل سوې وای، ښه به وای.

- په ۶۲ مخ کي د څلرم بیت (خوځی) که ( خوځئي، خوځیي) سوی وای، ښه به وای. حاشیه ئې بالکل سهي ده.

- په ۱۳۲ مخ کي د دریم بیت (تمامی) که (تمامئي، تماميي) سوی وای، ښه به وای. حاشیه ئې سمه ده.که په دغه راز مواردو کي د همزه لرونکي یاء پر ځای د ۱۳۴ مخ مثال تعقیب سوی وای، د شاعر لهجې ته به ډېر نزدې وای. هورې ئې (یشیي = ایشیي) بالکل سم ثبت کړی دئ.

- په ۲۲۵ مخ کي چي مرتب د اصل (اوګده) په (اوږده) اړولی دئ، بالکل پر ځای اوسم کار دئ. متون باید په همدغه ډول ترتیب او تهیه سي.

- په ۲۴۴ مخ کي چي له (انګولا) څخه الف پاته سوی دئ، ما ته چاپي تېروتنه ایسي چي سمېده غواړي.

- د۲۵۱ مخ په اوله حاشیه کي (ورسړي) چاپي تېروتنه ده او پر ځای ئې باید (ورسوي) ولیکل سي.

د۳۰۵ مخ اوله حاشیه له چاپه پاته سوې ده. د دېوان په دوهم چاپ کي باید پر زیاته سي.

په ۳۴۴ مخ کي هم اوله حاشیه نسته.

- د ۳۱۷ مخ "د مزار سنګ به تر سره یې پر تا وکړم" به زماپه فکر داسي سهي وي چي"د مزار سنګ به تر سره ئې ارتاو کړم". ارتاو د (غورځولو) په معنا کارېږي. ژوندی لغت دئ.

- د ۳۶۳ مخ د ۴۱۷ نمبر غزلي د دوهم بیت (بیلی) باید ( بیلئي، بیلیي) سي. حاشیه ئې سمه ده.

- د ۳۷۳ مخ په نهم بیت کي که (که و موړ ک...) باید (که موړ ک ...) سي.

د دېوان د چاپي لیکدود په برخه کي دونه قدرباید ووایم چي د اوږدې یاء ننني مسلط دود او بېځایه کارول ئې هغه څه دي چي ګوته ورته نیول کېدای سي. د دغي یاء دونده (دومره) ډېر استعمال د نواب محبت خان له شعري ژبي یا لهجې سره تناقض لري. شاعر که په شعر کي (چې) د (چي ئې) پر ځای راوړی وي (۲۵۸ مخ)، نو (چي) به ئې په کوم مجوِّز هر ځای په اوږده یاء کښلی وي؟ د دېوان په ځینو کلماتو کي د اوږدې یاء زیات استعمال د شاعر په ژبه کي د مداخلې مثال بللای سو. (چې، مې، کې، دې،...) له هغو خاصو مواردو پرته چي شاعر ئې د (چي ئې، مي ئې، کي ئې، دي ئې،...) له پاره راوړي، نور ټول د اوسني لیکدود او یوې ځانګړې لهجې شکلونه دي چي په وچه سرزوري د ځینو شاعرانو په کلام نننه ایستل کېږي.

زه تر دغو لنډو څرګندونو وروسته د نواب محبت خان د دغه دېوان چاپېدل ستایم او مرتب ته ئې مبارکي وایم.



څېړندوی عبدالغفور لېوال

# د پیرمحمد کاکړ شاعرانه تصویرونه

په شعر کي تصویر کارونه نوې هنري هڅه نه ده، دا ارزښت لرغونی دئ، خو په شعر کي د تصویر په اړه بحثونه او د یوه بېل هنري اصل په توګه ئې پېژندنه لږ تر لږه زموږ په ادبي حوزه کي نوې ده. پخوا به هم د تشبیهاتو، استعارو او بدیعي صنایعو په مرسته شاعرانه تصویرونه رامنځته کېدل. کلاسیکو شاعرانو ورو ورو د بشپړو داسي تصویرونو په پنځولو پیل وکړ، چي له رواني پلوه ئې ښکلا ته د تېري انسان د ذوق خړوبولو په هدف د لوستونکیو یا اوریدونکیو په وړاندي مجسمه ښکلا دروله. د بشپړو شاعرانه تصویرونو تخلیق د تخیل پرمختللی تولید دئ.

خوشال خټک د حالت د خوځنده تصویرونو تجربې راپیل کړې:

**په خـــوني هاتي ســـوره شـوه مې پرسته**
**زه هم مست، هاتي هم مست دئ دا هم مسته**

**خـــدای د درې د واړه مســـتانو سره ســـر کړ**
**بله نشـــــته، یا به نېست شي یا به هسته**

کلیات: ۱۲۴

په تصویر جوړونه کي د سېمبولونو ونډه ډېره مهمه ده. د خان په دې بیتونو کي خوني هاتي د مستۍ، ځوانۍ، خوځښت او حتی نارینه قوت له پاره سېمبول کارول شوی دئ، چي یو شاعرانه موقعیت او حالت تداعي کوي.

وروسته موشګاف حمید د عیني او ذهني تصویرونو د ترکیب عجیبي بېلګې راوپنځولې:

**خط پرمخ دصنم راغی، که سپوږمۍ شوه په هــاله کي**
**دا ئې غاښ په خوله کي زیب کا، که ژاله شوه په لاله کي**
**دا زما له غمه شین زړه پکښې خـــیال د یار د شـــونډو**
**هسي رنګ زیب و زینت کا لکـه مې په شـــنه پیاله کي**

د داسي تصویر جوړونې اړتیا او نوښت هاغه مهال قوت مومي، چي تکراري تشبیهات د شاعر ذوقي تنده خړوبه نه شي کړای.

پیرمحمد کاکړ د شاعرانه تصویرونو د ارزښت موندنې د زمانې له نوښتګرو شاعرانو څخه دئ، چې په غزلو کې ئې پرېمانه او په زړه پورې شاعرانه تصویرونه موندلای شو. راځئ د هغه له یو شمېر په زړه پوري او ابتکاري بېلګو به ئې پیل کړو او بیا به د ده په شاعرۍ کې د بېلابېلو تصویرونو شننه وکړو:

**تار په تار چې پرسپین مخ زلفې سنبل کا**
**په هــــر تار ســـره د زړونو بندول کا**
**د دعــــا په فـانوس باد لـــه یاره نیسم**
**چـــرته نه چې ئې ډېــوه د حسن ګل کا**

دېوان: ۵۱

په لومړۍ میسره (مصرع) کې له یو ه عادي عیني انځور سره مخامخ یو، چې د یار په سپین مخ تار تار زلفې تمثیلوي او د لومړي بیت په دوهمه میسره کې بیا د یوه ذهني تصویر بافت ګورو، چې د زلفو په تار د زړونو بندول (چې یوازې په ذهن کې پېښېدای شي) انځوروي. د شاعر تصویري او هنري کمال په دوهم بیت کې دئ، چې زما په ګومان له ډېرو معاصرو شعرونو څخه ئې قوت ډېر دئ. راځئ دا بیت د نوې شاعرۍ په فارمټ کې وڅېړو:

**د دعا په فانوس**
**باد**
**له یاره نیسم**
**چرته نه،**
**چې یې ډیوه**
**د حسن ګل کا.**

د عیني عناصرو له مجموعې څخه دغه رغېدلی ذهني تصویر عجیبي ځانګړنې لري: د دعا فانوس د لپې یا پر چا د راتاوېدو له پاره بیخي په زړه پوري استعاره ده. فانوس هغه څراغ ته ویل کېده چې خلکو به د ګرځېدو پر مهال کاراوه. له ډېوې سره ئې توپیر دا وو، چې د لنبې د بل ساتنې له پاره ئې محفظه یا ښیښه یې پوښ درلوده، په لپه کې د حسن د ډېوې ساتل، د معشوقې تر ښکلا د یوې حریصې راتاوېدنې له پاره یوه ښکلې بهانه ده، شاعر دلیل لري، غواړي د یار حسن له باده وژغوري، په تېره بیا چې په لومړي بیت کې ئې په سپین مخ د زلفو د تار تار کېدلو وېره یاده کړې وه.

په شاعرانه تصویرونو کې د نوښت یوه لاره دا ده، چې تاسو ورته نوي اشیا د تصویري سِټ د عناصرو په نقش کې ورننباسئ. دا اشیا کېدای شي د ژوند د چاپېریال ډېر عادي شیان وي، د شاعر هنر دا دئ، چې همدې عادي اشیاوو ته هنري موقعیت یا بستر جوړ کړي.

په لاندې بیتونو کې د پیرمحمد کاکړ تصویري عناصر وګورئ:

**کارګوني زلفې چې غوړي په پلپل کا**
**ډېر عالم به ګرفتار په هسې خېل کا**
**چې د ناز رانجه ئې پوري کړه په سترګو**
**جادوګر به غزاله د خُتن اېل کا**
**هسې کار مې یار په غوټه د تندي کا**
**لکه کار په پانې ستورې د سهېل کا**
**پاس پر زړه به ئې تل اور د فراق بل وي**
**چې بتۍ غوندې ئې غوړ د عشق په تېل کا**
**تر لېمه چې مې باران د حسرت اوري**
**کښت د صبر به مې وران د اوښو سېل کا**

دېوان: ۵۲

پلپل، د ناز رانجه، د تندي غوټه، پاڼي او د سهېل ستوری، بتی، تېل، د صبر کښت او د اوښو سېل، ټول هاغه تصویري عناصر دي، چي که له پورته شاعرانه بسترونو څخه پرته یاد شي تاسو ئې عادي اشیا بولی، خو په یاد شعر کي همدغه عادي اشیا د نویو شاعرانه تصویرونو د میناتوری جوړښتي توکي دي.

په یوه غزل کي د پیرمحمد کاکړ دا بیت عجیب تصویري کیفیت لري، چي دلته په راوړلو ئې مجبور یم:

**د کاکل غوټه ئې خلاصه کړه نسیمه**
**معطر مي په ښه بوی کړه لږ مشام بیا**

دېوان: ۵۴

د شاعر هدف دا دئ چي مشام ئې معطر شي، خو د دې بهانې له پاره چي له باده څه غواړي د هغه ترسیم ئې د ښکلا پنځوني هڅه ده، له باده غواړي، چي د یار د کاکل غوټه خلاصه کړي، په دې پېرسیونیفیکشن کي تاسو د نسیم ګوتې احساسوی، چي د چا د کاکل غوټه خلاصوي.

په شعر کي د ماضي حسرت د نوستالژیکو تصویرونو د جوړولو لامل ګرځي، د رتهنبور په بند کي د خوشال د شعرونو فضا له همداسي نوستالژۍ څخه مالامال ده. پیرمحمدکاکړ د وصال د زمانې حسرت په یو غزل کي تصویر کړی دئ، راځئ ځیني برخې ئې دلته ولولو:

**یاد کړه هغه وخت چي تماشا کړه ما و تا**
**یا د ګل خندا وه یا خندا کړه ما و تا**
**غم دبېلتانه و حواله پرنورو خلکو**
**تل به په خلوت کي مشغولا کړه ما و تا**
**تا ته ګل حیران و، بلبل ما و ته دلبره**
**ډېره یو ځبله چي وفا کړه ما و تا**
**حکم د باد نه و، چي تر منځه زما و ستا شي**
**کله په دلال د عشق سودا کړه ما و تا**

دېوان: ۵۵

د کلاسیکو فورمونو په تېره بیا غزل ځانګړنه دا ده چي هر بیت پکي بېل معنوي واحد شمارل کېږي. له همدې امله ډېر ځله د تصویرونو حدود هم په یوه بیت کي را ځایول کېږي. په بله ژبه په کلاسیکو غزلونو کي ډېر ځله بیت د مانایي واحد ترڅنګ تصویري واحد هم دئ. د پیرمحمد کاکړ د لاندیني غزل بیتونه هر یو بېل بېل شاعرانه تصویرونه راځای کړي دي:

**اوښو د فراق مي د مخ آب راڅخه یووړ**
**کښت مي د زعفرانو دې سېلاب راڅخه یووړ**
**نور د مردمک مي ځلاوه و زېبا مخ ته**
**څاځکی د شبنم زما آفتاب راڅخه یووړ**
**تېغ چي د جفا په خپله کاږي خونرېزي کا**
**زړه مي په سره لاس هغه قصاب راڅخه یووړ**
**میني بې حجابه پسي وایستم له کوره**
**پټ چي یوسف حسن په نقاب راڅخه یووړ**
**سپین کاغذپه مهر و د صنم چې قاصد راوړ**
**رنګ ئې د چشمانو په خوناب راڅخه یووړ**

دېوان: ۷۷

زموږ دغه کلاسیک شاعر ډېر ځله د معاصرو تصویرپردازانو په څېر د عیني او ذهني تصویري ټوټو موزون بافت ته په ډېره زیرکۍ پام ساتي، ځکه دی نه غواړي د پرله پسې ذهني تصویرونو په راوړلو سره ابهام او تصنع ته ورواوړي او نه هم د ډېرو عیني

تصويرونو په څنګه ګونه خپل شعر د منظوم روايت تر بريده له هنريت څخه ليري کړي، د داسې انتظام بېلګې ئې په لاندنيو بيتونو کې وګورئ:

**اور د ګل چې بلـوي باد ســـبا تل**
**کړوي باندي بلبل غوندي شـيدا تل**
**د شبنم په دود ژړا په صبـحدم کړم**
**سترګي مينځم د ديدن په تمـنا تل**

دېوان: ۹۳

يا:

**رنګ د شونډو ئې راياد شو په هجـران کې**
**لکه خـم د مـــيو راغلم پر جـوش څکه**
**په چشـــــمانو کې ئې وېره د صـياد ده**
**تل په روڼو سترګو خواب کا خرګوش څکه**

دېوان: ۱۲۰

رضابراهني فکر کوي، چې: "پخوا د تشبيه او استعارې تعريف، د ژبنيو ځانګړنو پر بنسټ کېده، نه د ښکلا پېژندني د اصولو پر بنسټ، خو نوې کره کتنه شعري تصويرونه او دغه دواړه (تشبيه او استعاره) د ښکلاپېژندني او اروا پوهني پر بنسټ راپېژني".

طلا در مس: ۷۷

له هاغه مهاله چې شعر ته د ښکلا پېژندني له نظره کره کتنه کېږي او يا هم شعر د نوي اروا پوهني له معيارونو سره سم څېړل کېږي، تصوير يکي ځانګړې ارزښت مومي، بلکي تصوير د شعر ښکلاييز روح ګڼل کېږي.

د پيرمحمد کاکړ په لېريکو - عاشقانه غزلونو کې د ښکلا پنځووني د يوې ژورې رواني تندي فوران وينو چې په هاغه مهال او دوديزه ټولنه کې ئې بيانول سخت وو. د نومورې په يوه غزل کې تاسو د ګڼو ښکليو ايډيالو عاشقانه شېبو تصويرونه موندلای شئ:

**راشه ګلعذاره زلفي ورو ورو خوځوه ته**
**زړه مي په ټال کښېووت په احتياط ئې زنګوه ته**
**خط د ښکلي مخ دي عجب زېرى د وفا کا**
**سترګي مي پر حال زېبا نګاره روڼوه ته**
**زړه مي په نسيم و رضا ښاد کړه حق لپاره**
**زر مي صبحدم د مراد غوټۍ وغوړوه ته**
**سر مي په صحرا کي لکه ګوی د چوګان ستا دئ**
**جلد سمندرخيال پر دا ميدان زغلوه ته**
**زاغ د مردمک خو مي مرغه د اوبو نه دئ**
**تل ئې په ګرداب د حسرت مه غوټه کوه ته**
**لب که دي په لب دپاسه زه تشنه لب کښېږدم**
**وېښ راته ويده شه په شربت مي اوبوه ته**
**زړونه به جدا په شانه نه کړې له زلفينو**
**بس هومره آزار د خوږو زړونو ټولوه ته**
**ډېر دي په فراق کي مين سوي دي دلبره**
**لږ اوس دي رقيب پر دا لمبه وکړوه ته**
**ونغاړه کتاب د وعظ و پند له پيرمحمده**
**باب د محبت په ښه تحقيق ورلولوه ته**

دېوان: ۱۲۷

ټولي يادي بېلګې ښيي، چې پيرمحمد کاکړ يوازي له ژبنيو صنايعو څخه د نظم جوړولو له پړاوه وراوښتی د ښکلا پېژندني او اروا پوهني له معيارونو سره سم د هنري تصوير پنځووني بريد ته رسېدلی شاعر وو، د ده ګڼ شاعرانه تصويرونه له خپلي زمانې څخه ډېر نوي او ښکلي دي، چې زما په فکر ده دېوان په دې برخه کې د ځوانو شاعرانو له پاره د زده کړې او بېلګه يي سپړني او څېړني په زړه پوري مواد لري.



محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# اصلي او معترضه جؤملې څنګه سره بېلي کو؟

زموږ پوه او باذوقه لوستونکي د دې روښانه حقیقت له منلو څخه نټه نه کیي، چي ځیني ژورنالیستان، لیکوال او څېړونکي په لیکنو کي د لنډو، ساده او اسانه جؤملو (جملو) پر ځای دونه اوږدې او پېچلي معترضه فقرې (جؤملې) رانغاړي، چي له لوستونکو څخه په پوهېدو کي لار و ګوډر ورک کیي. څوک نه پوهېږي، چي جؤمله چیري پیل سوې؛ چیري ختمیږي؛او پر څه خبري کیي.

په دې لنډکی مقاله کي پر دې مسأله څو خبري کوو، چي څنګه په اصلي جؤمله کي د معترضه فقرې یا فقرو د بېځایه اوږدوالي، پېچلتیا او ګډوډی مخه ونیسو. د دې موضوع د ښې او دقیقي شنني دپاره تر هر څه دمخه بې ګټې نه بولو، چي په چټکی سره د اصلي او معترضه جؤملو د پېژندني او ډولو په باره کي څو لنډ ټکي بیان کو.

زما د مالوماتو له مخي، په پښتو کي د اصلي او معترضه جؤملو پر دغو اړخو خبري کول، نسبتاً نوې موضوع ده. البته، د هري نوي موضوع په څېړنه او شننه کي کمزوری او نیمګړتیاوي هم خورا ډېري یې( وي). په دې خاطر نو له درنو لوستونکو څخه هیله لرم، چي و هري خبري او هر ټکي ته په انتقادي نظر وګوري؛ او د علمي نظریو په وړاندي کولو سره یې په کره کولو او بشپړتیا کي برخه واخلي.

**الف - جؤمله (sentence) څه ته وایي؟**

په ساده او اسانه ژبه، جؤمله د څو ټکو یا کلیمو (کلمو) داسي یوځایوالي ته وایي، چي مبتدا (subject) او خبر (predicate) و لري؛ او بشپړه مانا ځني واخیستل سي. «زه کور ته ځم»، «ما ډوډی وخوړله»، «نن مي له یوه پخواني اشنا سره خوړ بانډار وکئ» او داسي نوري ټولي جؤملې دي؛ ځکه هر جؤمله ځانته «مبتدا» او «خبر» لري؛ او د هري جؤملې په مانا اخیستو کي هیڅ نیمګړتیا او جنجال نسته؛ خو «شیدې او مستې»، «اوریجي، غوښې او کباب»، «ډېري خبري»، «په کور کي»، «بېله تا»، «ستا سره»، «له دوشمبې/ دوشنبې څخه» او داسي نور جؤملې نه، بلکي عبارتونه (phrases) بلل کیږي. که له دغو عبارتو سره ځیني نور ټکي په داسي ډول یو ځای کو، چي بشپړه مانا ځني واخیستل سي، بیا نو دا نیمګړي عبارتونه په جؤملو اوړي؛ مثلاً: «شیدې او مستې ډېره ګټه لري»؛ « پرون مو په واده کي اوریجي، غوښې او کباب و خوړل»؛ «ډېري خبري ګټه نه لري»؛ «نن ټوله روځ/ ورځ په کور کي وم»؛ «بېله تا مي له چا سره وړ نه وزي»؛ «ستا سره دوستي خپل ویاړ ګنم»؛ «له دوشمبې/ دوشنبې څخه د پوهنتون ازمویني شرو کېږي".

په دې ترتیب، د کلیمو و هغي مجموعې

ته جوُمله نه سوویلای، چي «مبتدا» او «خبر» و نه لري. کله چي «مبتدا» او «خبر» و نه لري، بشپړه مانا هم نه ځني اخیستل کېږي.

دا خبره هم د یادوني وړ ده، چي جوُملې د کلیمو د ګرامري جوړښت او ترتیب له مخي په بېلابېلو ژبو کي یو راز نه دي. په پښتو، پاړسي او ځینو نورو ژبو کي د کلیمو اوډنه یا ترتیب داسي بڼه لري:

فاعل+ مفعول+ فعل ( + Subject Object + Verb). و دغه راز ژبو ته، په لنډ ډَول (SOV) ژبي وایي؛ مثلاً: «زه کور ته ځم». په دې جوُمله کي (زه) ضمیر/ فاعل/ مبتدا، (کور) اسم/ مفعول او (ځم) فعل/ خبر دئ. یا «من به بازار می روم.» په دې جوُمله کي (من) ضمیر/ فاعل/ مبتدا، (بازار) اسم/ مفعول او (می روم) فعل/ خبر دئ.

په جوُمله کي د فاعل، فعل او مفعول موقعیت ته په کتو سره (SOV)، (SVO)، (VSO)، (VOS)، (OVS) او (OSV) ژبي په ترتیب سره، تر ټولو ډېري دي[1].

**ب مبتدا او خبر څه شي دي؟**

هر هغه شخص، شی، ځای، سوچ یا موضوع، په لنډ ډَول د «مبتدا» په نامه یادیږي، چي په جوُمله کي خبري پر کوو. هر هغه څه ته «خبر» ویل کیږي، چي د «مبتدا» په باره کي مالومات را کیي. د «مبتدا» او «خبر» موقعیت په ټولو ژبو او ټولو حالاتو کي یو شان نه دئ. په ځینو جوُملو کي «مبتدا» په سر او «خبر» په پای کي راځي. په ځینو نورو کي بیا «خبر» د جوُملې په سر او «مبتدا» په پای کي راغلئ یي؛ مثلاً: «خورا ښایسته ګلان دي د دوی په کور کي»؛ «د دوی په کور کي خورا ښایسته ګلان دي.» یا «له ډېرو ورځو راهیسي د احمد موټر خراپ/ خراب دئ»؛ «د احمد موټر خراپ/ خراب دئ له ډېرو ورځو راهیسي.» په دغو جوُملو کي د «مبتدا» او «خبر» ځایونه اوښتي دي.

**ج - ساده او مختلط (مخلوط) مبتدا** (simple and compound subject):

که چیري یوازي د یوه شخص، شي، ځای، سوچ یا موضوع په اړه خبري کوو، و دې ډَول «مبتدا» ته نو «ساده مبتدا» وایي؛ لکه: «زما کتاب پر مېز پروت دئ.» په دې جوُمله کي «کتاب» ساده مبتدا دئ. که و وایو: «زما کتاب او قلم پر مېز پراته دي.» په دې جوُمله کي «کتاب او قلم» مختلط یا مخلوط «مبتدا» بلل کیږي؛ ځکه په جوُمله کي د دوو بېلو شیانو په باره کي خبري کیږي.

**د - ساده او بشپړ خبر** ( simple and complete predicate):

د جوُملې فعل یا فعل او کومکي فعل په ګډه د «ساده خبر» په نامه یادیږي؛ خو «مکمل خبر» پر فعل یا فعل او کومکي فعل سربېره د هغو ټکو مجموعه ده، چي د «مبتدا» په باره کي پوره مالومات وړاندي کیي؛ لکه: «زما پلار سبا کابل ته ځي.» په دې جوُمله کي «زما پلار» مبتدا، «ځي» ساده خبر، «سبا کابل ته ځي» بشپړ یا مکمل خبر بلل کیږي.

مخکي مو یادونه وکړه، چي جوُمله د کلیمو داسي مجموعه ده، چي ځانته «مبتدا» او «خبر» و لري یا بشپړه مانا افاده کړای سي.

يوه جؤمله هغه مهال بشپړه مانا افاده کولای سي، چي لږترلږه يوه خپلواکه يا اصلي فقره (جؤمله) ولري. البته، په جؤمله کي پر يوې يا څو خپلواکو/ اصلي فقرو سربېره، يوه يا څو ناخپلواکي تبعي فقرې هم راتلای سي. راسئ اول په لنډو لنډو ټکو کي تبعي فقره او د هغې ډَولونه وپېژنو؛ او بيا د اصلي او معترضه جؤملې د بېلولو ځيني نظري او عملي اړخونه بيان کو.

**هـ/ تبعي فقره (The clause) څه وايي؟**

تبعي فقره د څو کليمو داسي مجموعه ده، چي ځانته فاعل او فعل لري؛ او د جؤملې د يوې برخي په توګه کار کيي[۲].

**و/ اصلي يا خپلواکه تبعي فقره** ( main or independent clause):

هغه تبعي فقره ده، چي ځانته فاعل او فعل لري؛ او مانا يې هم د جؤملې په نورو کليمو پوري اړه نه لري. له دې خاطره نود ساده جؤملې (simple sentence) په نامه هم پېژندل کيږي؛ خو په دې چي بيا هم د جؤملې (sentence) يوه برخه ده؛ ځکه نو د التباس د مخنيوي په مخسد د جؤملې پر ځای زياتره د اصلي يا خپلواکي تبعي فقرې په نامه ياديږي ( main or independent clause). زما په قاصر نظر هم د اصلي يا خپلواکي تبعي فقرې نوم تر جؤملې ډېر موزون برېښي.

**ز/ ناخپلواکه يا فرعي تبعي فقره** (subordinate or dependent clause):

د خپلواکي يا اصلي تبعي فقرې پر خلاف، ناخپلواکه يا فرعي تبعي فقره د مانا په لحاظ له ځانه بشپړه نه ده، بلکي مانا يې د جؤملې په نورو کليمو او برخو پوري اړه لري؛ مثلاً: «ټول خلګ ټېروزي؛ خو سرزوره او مغروره کسان دا خبره نه مني.» په دې جؤمله کي «ټول خلګ ټېروزي» خپلواکه يا اصلي تبعي فقره ده؛ ځکه مانا يې له ځانه پوره ده؛ د جؤملې په نورو برخو يا ټکو اړه نه لري. «خو سرزوره او مغروره کسان دا خبره نه مني» ناخپلواکه يا فرعي تبعي فقره ده؛ مانا يې له ځانه پوره نه ده: په بله وينا، د چا سر نه خلاصيږي، چي سرزوره او مغروره کسان څه نه مني؟ کله چي دا فرعي يا ناخپلواکه تبعي فقره له اصلي فقرې (ټول خلګ ټېروزي) سره يو ځای سي، بيا نو هر څه روښانه کيږي.

په دې ترتيب، ناخپلواکه يا فرعي فقره په واقعيت کي د خپلواکي/ اصلي فقرې د بشپړؤنکي يا شننؤنکي کار کيي؛ او په يوازيتوب سره هيڅکله د جؤملې (sentence) حُکم نه سي پر کېدلای.

**ح/ مُعترضه جؤمله څه ته وايي؟**

مُعترضه جؤمله په حقيقت کي د عربي ژبي اصطلاح ده، چي وروسته په پارسي، پښتو او ځينو نورو ژبو کي هم باب سوې ده. مُعترضه جؤمله په انګرېزي او نورو اوروپايي ژبو کي د اصلي يا خپلواکي تبعي فقرې ( main or independent clause ) او ناخپلواکي/ فرعي تبعي فقرې (dependent clause subordinate or) په نامه ياديږي. زما په قاصر نظر تر معترضه جؤملې معترضه فقره يا تبعي (اصلي يا فرعي) فقره موزونه نوم اينبوونه ايسي؛ ځکه په ځينو مواردو کي د کليمې په دقيقه مانا، پر معترضه عبارتو، د

جؤملې حُکم کول سهي نه دئ.

معترضه جؤمله په پښتو، پارسي او ځینو نورو ژبو کي و هغي اضافي فقرې یا جؤملې ته وایي، چي د اضافي مالوماتو او تشریحاتو په خاطر د اصلي جؤملې په منځ کي را وړل کیږي. کله کله یوې بشپړي جؤملې غوندي ځانته فاعل، فعل او مفعول یا مبتدا او خبر لري؛ خو کله کله بیا بېله مبتدا او خبره د یوه تکمیلي او توصیفي عبارت په توګه را وړل کیږي. د دا ډَول معترضه عبارتو موجودیت یا ایسته کول د جؤملې پر جوړښت، مبتدا او خبر او مانا هیڅ اثر نه ښندي. داسي اضافي توضیحات او تکمیلات کله کله په قوسو یا لیندییو، کله کله د دوو دشو/ ډشو یا بېلؤنکو نخښو او کله کله هم د دوو کامو یا ویرګولو په منځ کي کښېل کیږي؛ لکه: په دغو مثالو کي:

۱. لوی استاد - علامه حبیبي (۱۲۸۹ ش / ۱۹۱۰ع – ۱۳۶۳ش/ ۱۹۸۴ع ) د افغاني فرهنګ له ځلانده ستورو څخه دئ.

۲. استاد غلام محمد غبار، چي د ژوند ډېره برخه یې په زندانو او تبعیدو کي تېره سوې وه، د افغانستان نومیالی مؤرخ ؤ.

۳. حقیقت ویل – که څه هم ترخه دي – د هر چا خوښیږي.

که له تېرو جؤملو څخه معترضه فقرې یا تکمیلي/ توصیفي بیانونه ایسته کو، بیا هم د جؤملو په ګرامري جوړښت او مانا کي هیڅ بدلون نه راځي:

۱. لوی استاد - علامه حبیبي د افغاني فرهنګ له ځلانده ستورو څخه دئ.

۲. استاد غلام محمد غبار، د افغانستان نومیالی مؤرخ ؤ.

۳. حقیقت ویل د هر چا خوښیږي.

**ط/ د جؤملو ډَولونه:**

الف - جؤملې د وظیفه یې څرنګوالي له مخي پر درو ډَولو وېشل کیږي:

**۱. اخباري جؤملې** (declarative sentences):

هغه جؤملې چي د یوې پېښي یا موضوع په باره کي خبرتیا یا مالومات وړاندي کیي، د اخباري جؤملو په نامه یادیږي؛ لکه: «په راتلونکې هفته کي و هالنډ ته ځم»؛ «له څو روځو راهیسي دباندي نه یم وتلئ»؛ «دلته هر څه سته؛ خو د پردېسي ناخوالو یې خوند ډېر پیکه کړئ دئ.»

**۲. امري جؤملې** (imperative sentences):

امري جؤملې هغه جؤملې دي، چي د یو کار یا وظیفې د کولو امر کیي؛ مثلاً: «وځغله هغه کتاب راوړه!»؛ «په سفر کي همېشه و خپلو سامانو او لوازمو ته ډېر پام کوه!»؛ «نور دا بې مانا ایمیلونه مه را استوه!»

**۳. استفهامي یا سوالیه جؤملې** (interrogative sentences):

هغه جؤملې چي د یوې موضوع یا مسألې په اړه پوښتنه کیي، سوالیه یا استفهامي جؤملې نومیږي؛ لکه: «زما کتاب دي راوړئ دئ؟»؛ «له هالنده کله راغلئ یې؟»؛ «ډوډۍ دي خوړلې ده؟[۳]»

**۴. ندائیه جؤملې** (exclamatory sentences):

هغه جؤملې، ندائیه جؤملې نومیږي چي د ویونکي پیاوړي احساسات او هیجانات وښیي؛ او په پای کې د ندایې نخښه ایښووله کیږي؛ لکه: «دا څه لګه درګه ده!»؛ «دا بوټونه مو څونه ګران راتېولي دي!»؛ «د ښار

په هره برخه کې مظاهرې او ښورښونه دي!»

ب - جؤملې د جوړښت له مخې څلور ډوله دي:

**۱. ساده جؤمله** (simple sentence):

ساده جؤمله و هغې جؤملې ته ویله کیږي، چې یوازې یوه اصلي یا خپلواکه تبعي جؤمله ولري؛ فرعي یا ناخپلواکي تبعي جؤملې ته اړتیا و نه لري؛ لکه: «لندن د اؤروپا له غټو ښارو څخه دئ.» د مانا په لحاظ بشپړه جؤمله ده. «زه هره روځ پر دوو بجو ډوډۍ خورم»؛ «زموږ کور له بازاره یو څه لیري دئ» او داسي نور ټولي ساده جؤملې دي.

**۲. مرکبه جؤمله** (compound sentence):

مرکبه جؤمله، هغه جؤمله ده چې دوې یا څو اصلي / خپلواکي تبعي جؤملې (فقرې) ولري؛ خو ناخپلواکه یا فرعي تبعي جؤمله (فقره) و نه لري؛ لکه: «مېلمانه ټول خپلو کورو ته ولاړل؛ او موږ سمدلاسه د کور په جارو کولو لاس پوري کئ.» په دې مرکبه جؤمله کې دوې خپلواکي جؤملې د موښلؤنکي/ نښلؤنکي (conjunctional) «او» په وسیله سره یو ځای سوي دي. «احمد له انګرېزي ادبیاتو سره مینه لري؛ خو محمود غواړي په حقوقو کې لوړي زده کړې وکي.» په دې مرکبه جؤمله کې هم دوې اصلي/ خپلواکي جؤملې د «خو» په وسیله موښلول/ نښلول سوي دي. کله کله د دوو اصلي/ خپلواکو جؤملو د یوځای کولو دپاره له «مګر»، «لیکن/ لاکن»، «نو» او داسي نورو یوځای کؤنکو/ موښلؤنکو ټکو ( conjunctional words) څخه کار اخیستل کیږي.

**۳. مختلطه یا مخلوطه جؤمله** ( complex sentence):

هغه جؤمله ده، چې یوه اصلي/ خپلواکه تبعي جؤمله (فقره) او یوه یا څو ناخپلواکي/ فرعي تبعي فقرې ولري؛ لکه: «که څوک بې اشتها ډوډۍ وخوري، ناجوړه کیږي.» په دې مختلطه جؤمله کې «که څوک بې اشتها ډوډۍ وخوري» اصلي یا خپلواکه تبعي جؤمله ده. «ناجوړه کیږي» ناخپلواکه یا فرعي تبعي فقره ده، چې مانا یې په اصلي فقرې پوري تړلې ده. یا «په واده کې مو هغوی هم و لیدو ته راغلل، چې ډوډۍ یې و خوړله.» په دې مختلطه جؤمله کې «په واده کې مو هغوی هم و لیدو ته راغلل»، اصلي یا خپلواکه جؤمله ده. «چې ډوډۍ یې و خوړله » ناخپلواکه/ فرعي فقره ده.

**۴. مرکبه -مختلطه جؤمله** ( compound - complex sentence):

مرکبه -مختلطه جؤمله، هغه جؤمله ده چې دوې یا زیاتي مستقلي تبعي جؤملې او دوې یا زیاتي ناخپلواکي/ فرعي فقرې ولري؛ لکه: «بانډار ته خورا ډېر انډیوالان راغلي دي؛ و هر چا ته د شعر ویلو یا خبرو کولو فرصت ور کوو، که څه هم وخت ډېر محدود دئ.» په دې مرکبه - مختلطه جؤمله کې «بانډار ته خورا ډېر انډیوالان راغلي دي» او«و هر چا ته د شعر ویلو یا خبرو کولو فرصت ور کوو» دواړي خپلواکي تبعي جؤملې (فقرې) دي. «که څه هم وخت ډېر محدود دئ» ناخپلواکه/ فرعي فقره ده، چې مانا یې په لومړیو دوو جؤملو پوري اړه لري[۴].

اوس چې د جؤملې په مانا، متشکله

برخو، ډَولو او ځینو نورو ضروري خبرو لړوډېر پوه سوو، را ځو د اصلي موضوع و څېړني او شنني ته، چي څنگه باید په جؤملو کي د مبتدا او خبر د لیري والي یا پېچلتیا او گډوډۍ مخه ونیسو؛ ځکه موږ کله کله د جؤملو په منځ کي د یوې پر ځای دوې -درې داسي معترضه فقرې (جؤملې) هم کتاروؤ، چي ځیني یې ځانته «مبتدا» او «خبر» لري. د اصلي جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ دا متنوع خپلواکي یا ناخپلواکي معترضه فقرې (جؤملې) له زیاترو لوستونکو، په تېره بیا ما غوندي لږلوستو یا نالوستو کسانو څخه سَدوبَد ورک کیي. لوستونکي په اسانۍ نه پوهېږي، چي د جؤملې په سر کي څه ویل سوي وه، په منځ کې پر څه بحث سوئ ؤ؛ او بالاخره خبره پر څه پای ته ورسېدله. له دې خاطره نو اړوزي، چي څو پلا د جؤملې پر بېلو بېلو برخو مُرور وکي. په ډېري خواشینۍ سره، کله کله خو حتا څو واره مُرور هم د جؤملې په مانا اخیستو کي له لوستونکو سره چندان مرسته نه سي کولای؛ ځکه جؤملې د ریاضي د دوه مجهوله یا درې مجهوله معادلې بڼه اخیستې یي. ماناوي یې بېله څو پلا جمع و تفریق، ضرب و تقسیم او ځینو نورو حسابي عملیو څخه نه تر لاسه کیږي.

د مقالې په دې برخه کي د پښتو او دري د څو تکړه لیکوالو له ځینو مقالو څخه درې - څلور جؤملې د مثال په توگه وړاندي کوو؛ او د بېلابېلو جزییاتو په شنلو سره بنیو، چي د اصلي جؤملو د «مبتدا» او «خبر» تر منځ کوترم سوو معترضه جؤملو، څؤنه د هغو ماناوي پېچلې او مروړلي دي. البته، دا پېچلتیا او گراني د دغو پیاوړو لیکوالو د کمزورۍ یا خدای مکړه تېروتني مانا نه لري. دا لیکوال زموږ په ټولنه کي د دونه لوړ نوم او نښان خاوندان دي، چي ما غوندي بېچاره کسان یې په شلو کالو د پښو و خاورو ته هم نسي رسېدلای. دلته یوازي په جؤمله کي د اوږدوالي، گرانۍ او پېچلتیا پر مسأله خبري کوو، چي له څو گوتو په شمار لیکوالو چپه یې، زموږ ټولو ژورنالیستانو، لیکوالو، ژباړؤنکو او څېړؤنکو په ترجمو او لیکنو کي پراخ مثالونه تر سترگو کیږي.

د یوه مشهور شاعر او لیکوال د یوې مقالې په یوه جؤمله کي داسي راغلي دي:

«افضل خان لا ډېر ځوان وو چی خوشال خان هغه ته خپله خاني ورتسلیم کړه، او طبیعی خبره ده چی دا د خټکو د قبیلې د نورو مشرانو، د هغه د تربرونو او د کاگانو لپاره، چی هر یوه، که خاني د ځان حق نه باله نو، لږ ترلږه افضل خان یی هم د مشر په حیث نه سو منلای، د منلو وړ خبره نه وه.»

اوس د دې اوږدې جؤملې پر بېلو بېلو اړخو څو لنډې خبري کوو:

« افضل خان لا ډېر ځوان وو، چی خوشال خان هغه ته خپله خانی ور تسلیم کړه...»

دا جؤمله د بیان له پلوه اسانه او د مانا له پلوه بشپړه ده. تر دې جؤملې وروسته راغلي دي: «او طبیعی خبره ده چی دا د خټکو د قبیلې د نورو مشرانو، د هغه د تربرونو او د کاگانو لپاره، چی هر یوه، که خاني د ځان حق نه باله نو، لږ ترلږه افضل خان یی هم د مشر په حیث نه سو منلای، د منلو وړ خبره نه وه.»

دلته «دا» ضمیر د جؤملې مبتدا، «د منلو وړ خبره نه وه» یې خبر دئ. «دا» په حقیقت کې «د خانۍ سپارلو» و مسألې ته اشاره کیي، چې تفصیل یې په مخکنۍ جؤمله (افضل خان لا ډېر ځوان وو چې خوشال خان هغه ته خپله خاني ورتسلیم کړه) کې بیان سوئ دئ. مشکل دا دئ، چې د دې جؤملې د مبتدا (دا) او خبر (د منلو وړ خبره نه وه) تر منځ دغه نسبتاً اوږده او پېچلې معترضه جؤمله راغلې ده: «د هغه و تربرو او اکاگانو ته په دې چې هر یوه، که خاني د ځان حق نه باله نو، لږ ترلږه افضل خان یې هم د مشر په حیث نه سو منلای.»

د خپلواکو او ناخپلواکو یا اصلي او فرعي تبعي فقرو دې بدخونده تراګم د جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ فاصله دونه اوږده کړې ده، چې د لوستونکو و فکري تَسلسُل او تمرکز ته لوی زیان رسیيي.

که زه د دې ښاغلي لیکوال پر ځای وای، نو مې له لویه سره دا اوږده او گرانه جؤمله په دې ډَول پر ځو لنډو او اسانه جؤملو وېشله:

اوله جؤمله: افضل خان لا ډېر ځوان ؤ، چې خوشال خان خپله خاني ورتسلیم کړه.

دوهمه جؤمله: طبیعي خبره ده، چې دا کار د خټکو د قبیلې و نورو مشرانو ته د منلو وړ خبره نه وه. . .

دریمه جؤمله: ځکه د هغه تربرونو او اکاگانو که خاني د ځان حق نه باله، نو لږ ترلږه یې افضل خان هم د مشر په حیث نه سو منلای.

په نوې بڼه کې، د دوهمي جؤملې په جوړښت کې خورا لوی گرامري بدلون گورو. دې جؤملې پخوا یوازې «مبتدا» لاره، خو «خبر» یې د دریمي جؤملې په پای کې بیان سوئ ؤ. لوستونکي مجبور وو، چې د دې جؤملې د مانا پوهېدو دپاره تر ځو اصلي او فرعي فقرو (معترضه جؤملو) تېرپونه و وهي.

که د ښاغلي لیکوال اوږده جؤمله د درو جلا جلا جؤملو پر ځای د یوې جؤملې په بڼه پرېږدو، بیا نو د جؤملې د اسانۍ او روانۍ یوازنۍ لار دا ده، چې د «مبتدا» او «خبر» د نیژدې کولو په نیامت یې، په دې ډَول یو څه سره تېروبېره کو: «افضل خان لا ډېر ځوان وو چې خوشال خان هغه ته خپله خاني ورتسلیم کړه، او طبیعي خبره ده چې دا د خټکو د قبیلې د نورو مشرانو، د هغه د تربرونو او د کاگانو لپاره د منلو وړخبره نه وه چې هر یوه، که خاني د ځان حق نه باله نو، لږ ترلږه افضل خان یې هم د مشر په حیث نه سو منلای.»

په دې ډَول، د معترضه بیانونو په شا ته اچولو سره د دوهمي جؤملې «خبر» و «مبتدا» ته نیژدې سو؛ او دا نیزدېکت له لوستونکي سره د جؤملې د مانا په پوهېدو کې ډېره مرسته کیي. په بله وینا، لوستونکي نور نو، سرخوږي لنډ په لنډو پوهېږي، چې د خوشال خان له خوا و ځوان افضل خان ته د خانۍ سپارل، خپلو او پردو ته د منلو وړ نه وه.

د دې نامتو لیکوال له دغې مقالې څخه و یوې بلې جؤملې ته پام کوو: «د کال ۱۶۱۶ په شاوخوا کې د مغول جهانگیر د پاچاهۍ په یوولسم کال قدم اېږدی، چې د مغول دربار یو ملگری او طرفدار قومي مشر وو، او د خیبر د لارې ساتنه یې پر غاړه درلوده، اود خیبر د درې ټوله راهداري په ده اړه درلوده، یاغي سو

او دا اپرېدیو ټوله سیمه یې ناکراره کړه.»

په دې اوږده جؤمله کې هم څو خپلواکې او ناخپلواکې تبعي فقرې (جؤملې) یو د بل تر څنګ کوترم سوي دي. د جؤملې مبتدا په حقیقت کې «قدم اپرېدی» او خبر یې «بغاوت+ د اپرېدیو د ټولې سیمې ناکراره کېدل» دي. لکه څنګه چې ګورو، د دې «مبتدا» او «خبر» تر منځ خورا اوږده بیانونه او چکرونه راغلي دي. دا اضافي پېښې او کیسې و لوستونکو، په تېره بیا ما غوندي نالوستو یا لږ لوستو کسانو ته د زړه دؤک ور اچیي. دا اوږده معترضه بیانونه کټ مټ داسې مانا لري، لکه څوک چې د یوې مهمې خبرې په یادونه پیل و کي، خو د تفصیل ویلو پر ځای یې سمدلاسه د نورو خبرو او کیسو سر کښېږدي.د خبرو دا ډول اجمال او انقطاع د اروېدونکو یا لوستونکو په مغزو کې شل تلوسې او اندېښنې پیدا کیي. مخسد (مقصد) دا دئ، چې د ملا شاه ګل د غوا په کیسه باید هیڅکله د هغه د خرَه او سپې داستانونه ګډ نه سي. ښه خو دا وه، چې دا پراګراف ډَوله جؤمله د پښتو ژبې د نحوي اساساتو له مخي پر څو لنډو او ساده جؤملو وېشل سوې وای.که د لیکوال د لنډو او ساده جؤملو سبک نه خوښېدای، بیا خو یې لږترلږه باید د جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ د دونه معترضه بیانونو په کوترمولو سره و لوستونکو ته مانوي (معنوي) پېچومې نه وای پیدا کړي(۵).

د یو بل تکره لیکوال د یوې مقالې په یوه جؤمله کې داسې راغلي دي:

«دغه حکایت د هجویري غزنوي (داتا ګنج بخش) په کشف المحجوب کې چې د تصوف ډېر معتبر کتاب ګڼل کېږي، راغلی دی.»

په دې جؤمله کې «حکایت» د جؤملې مبتدا، «راغلئ دئ» یې خبر دئ. په دې جؤمله کې د (داتا ګنج بخش) پر تشریحي یادښت سربېره، یوه ناخپلواکه یا فرعي فقره هم راغلې ده، چې مانا یې په خپلواکه یا اصلي جؤمله پورې اړه لري. دا ناخپلواکه یا فرعي فقره دا ده: «چې د تصوف ډېر معتبر کتاب ګڼل کېږي».

البته، په جؤمله کې د داسې ضمني تبصرې ځایول قطعاً بده خبره نه ده؛ ځکه لیکوال و لوستونکو ته د کتاب د ارزښت په باره کې اضافي مالومات یا لږترلږه خپل نظر وړاندي کیي؛ خو دا اضافي مالومات یوازې هغه وخت خوندَور او په زړه پورې ګڼل کیږي، چې د جؤملې په مانا اخیستلو کښې ګراني او پېچلتیا پېښه نه کي. د مخکښې لیکوال دوو نمونه یې جؤملو غوندې، د دې لیکوال د جؤملې په مانا هم تر هغه مهاله د لوستونکو سر نه خلاصیږي، چې د «مبتدا» په اړه یې «خبر» و نه لولي.

د اسانۍ یوازنۍ لار یې بیا هم دا ده، چې د جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ اوږده واټنونه په دې ډَول را لنډ سي:

«دغه حکایت د هجویري غزنوي (داتا ګنج بخش) په کشف المحجوب کې راغلی دی، چې د تصوف ډېر معتبر کتاب ګڼل کېږي.»

لکه څنګه چې ګورو، په دغه جؤمله کې یوازې معترضه فقره د جؤملې و پای ته تللې ده، نور هر څه پر خپل ځای پاته دي. د «مبتدا» او «خبر» دا ډَول نیژدېوالی، بېله شکه د اروېدونکي یا لوستونکي له سره دروند

پېژني ايسته کيي[٦].

اوس د دري ژبو ليکوالو له ځينو مقالو څخه د نمونې په توګه، يوه يوه جؤمله رااخلو:

يو تکړه شاعر -ليکوال د خپلي مقالې په يوه جؤمله کي داسي کاږي:

«بياييد جنايتکاراني راکه تا سگ دروازهٔ شان از خون مردم مليادرد شده اند و غرض تصاحب مال ومنال بيشتر مردم، براريکه قدرت لميده اند، و از بادار کشته شده ايشان مسيح وحسين وقهرمان ساخته اند انتقاد نمائيم.»[٧]

«جنايتکاران» د دې اوږدې جؤملې «مبتدا» او «انتقاد نمائيم» يې «خبر» دئ. ليکوال د دغي جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ څو نوري خپلواکي او ناخپلواکي فقرې هم کتار کړي دي، چي له لوستونکو څخه لار و ګؤدر ورک کيي؛ خکه د جؤملې په سر کي د جنايتکارانو خبره کيي؛ خو سمدلاسه دا نه وايي چي خداى وهلو جنايتکارانو څه ټکه اچولې يا څه ټکه پر لوېدلې ده؟! برعکس، له جنايتکارانو سره د خبري سپينولو پر ځاى د هغو تعريفو او توصيفو ته ملا تړي. په بله وينا د جنايتکارانو تعريفونه او صفتونه کاږي، خو پر فعل او کرتؤت يې تله تېريي.

وګورئ، په قوسو کي راغلئ بيان، ټول په واقعيت کي هغه اضافي خبري دي، چي د جنايتکارانو د پېژندني او کرتؤت په اړه سوي دي: «... راکه تا سگ دروازهٔ شان از خون مردم مليادرد شده اند وغرض تصاحب مال ومنال بيشتر مردم، براريکه قدرت لميده اند، و از بادار کشته شده ايشان مسيح وحسين و قهرمان ساخته اند... »

کله چي محترم ليکوال د جنايتکارانو له معرفي کولو او برملا کولو فارغ سي، بيا نو د دې خبري وسپيناوي ته را ګرزي، چي له هغو سره به څه چلن او مامله (معامله) کيږي.

که ليکوال د ټولو معترضه خبرو او بيانونو په شا ته اچولو سره، د اصلي جؤملې «خبر» و «مبتدا» ته نيژدې کړئ واى، ښېله شکه بې (به يې) د جؤملې په مانا پوهېدو کي د لوستونکو ذهني بوج هم تر ډېره حده کم کړئ واى.

په تعديلِ سوي حالت کي جؤمله داسي جوړښت پيدا کيي: «بياييد جنايتکاراني را انتقاد نمائيم، که تا سگ دروازهٔ شان از خون مردم مليادرد شده اند وغرض تصاحب مال ومنال بيشتر مردم، براريکه قدرت لميده اند، و از بادار کشته شده ايشان مسيح وحسين و قهرمان ساخته اند.»

لکه څنګه چي ګورو، په تعديل سوې ښه کي نور هر څه پر خپلو ځايو پاته دي، فقط «انتقاد نمائيم» و «جنايتکاران» ته ور نيژدې سوئ دئ. د «مبتدا» او «خبر» دا نيژدېوالى ښېله شکه له لوستونکو سره د جؤملې په مانا اخيستنه کي يو عالَم کومک کيي.

البته، دونه اوږده او زايد معترضه بيانونه په خپله هم و اروېدونکو يا لوستونکو ته د جؤملې په مانا اخيستنه کي ذهني ستړيا او کله کله ګډوډي او تېروتني پېښيږي. زه خو يې له لويه سره شوقي نه يم.

د يوه بل تکړه دري ژبي ليکوال له يوې مقالې څخه و دغه اقتباس ته پام وکئ: «آيا اين حرف ها در مورد انساني که روز ها را در روزه

گرفتن و شب ها را در نماز خواندن سپری می کرد و از ترس این که مبادا گوسفندی گندم کسی را بی اطلاع صاحبش خورده باشد، کم و بیش چهل سال آخر عمرش را بدون خوردن گوشت سپری نمود - شاید به همین دلیل او را برهمن خوانده اند -، صاحب مدرسه و صد ها شاگرد بود و ...، درست است؟ »

محترم لیکوال د خپلې مقالې په مخکنیو پاراگرافو کې د عربو د مشهور ړانده شاعر او فیلسوف (ابوالعلاء معیري) د نظریو یادونه کړې ده. په دغه اقتباس سوې جؤمله کې د دې شاعر او فیلسوف د نظریو په وړاندې د عامو مسلمانانو د مخالفت بیان راوړئ دئ. البته، موږ په دې مقاله کې له دې مسألې سره هیڅ اړه او مانده نه لرو، چې د مسلمانانو ښلو ښلو ډلو ولې دا نامتو عرب شاعر او فیلسوف په دې یا هغه نومو کړلئ دئ. زموږ خبري یوازې د دغه محترم لیکوال په اوړده او پیچلې جؤمله کې د «مبتدا» او «خبر» د لیریوالي پر مسأله را گرزي، چې ما غوندې ساده او بېچاره لوستونکو ته د جؤملې په مانا پوهېدنه کې لوی سرخوږی او کړاو پېښیږي.

وگورئ په دې جؤمله کې «آیا این حرف ها» د جؤملې مبتدا، «درست است؟» یې خبر دئ. دا دوې برخې (مبتدا او خبر) تر دونه اوږدو معترضه مالوماتو او تشریحاتو وروسته راغلې دي، چې د سړي هوښ له سره باسي. د لوستونکي سر نه خلاصیږي، چې جؤمله چیرې شرو او چیرې ختمه سوې ده؛ اصلي جؤمله کمه ده او فرعي جؤمله کمه ده؟ د «مبتدا» او «خبر» په منځ کې دونه مستقلې او غیرمستقلي تبعي فقرې (جؤملې) کوترم سوي دي، چې د اصلي جؤملې مانا او مفهوم یې په شلو پردو کې را نغښتئ دئ. داسې جؤملې د فصاحت او بلاغت د اصولو له مخې ډېرې کمزورې گڼل کیږي. په دې چې بیانونه یې اوږده، خو افاده یې گرانه او غامضه ده. هیڅوک له دې روښانه حقیقته نټه نه سي کولای، چې هر اروېدونکی یا لوستونکی د دغه راز جؤملو په مانا اخیستنه کې لوی ربړ او تکلیف ویني.

ښه خو دا ده، چې داسې اوږدې او پېچلې جؤملې پر څو لنډو او اسانه جؤملو و وېشل سي. که دا نه کیږي، بیا خو یې د مانا اخیستنې د اسانۍ دپاره یوازې یوه لار سته، چې هغه د اصلي جؤملې د «مبتدا» او «خبر» سره نیژدې کول دي او بس.

درنو لوستونکو! وگورئ او قضاوت وکئ، چې د اصلي جؤملې د «مبتدا» او «خبر» په نیژدې کولو سره د جؤملې په پوهېدو کې څونه اساني پېښیږي: «آیا این حرف ها در مورد انسانی درست است، که روز ها را در روزه گرفتن و شب ها را در نماز خواندن سپری می کرد و از ترس این که مبادا گوسفندی گندم کسی را بی اطلاع صاحبش خورده باشد، کم و بیش چهل سال آخر عمرش را بدون خوردن گوشت سپری نمود؛ شاید به همین دلیل او را برهمن خوانده اند و صاحب مدرسه و صد ها شاگرد بود...؟ »[۸]

دا جؤمله هم د دغه لیکوال له یوې بلې مقالې څخه اخیستل سوې ده: «نا گفته پیداست که این اولین بار نیست که کرزی این جانیان آرمیده در مهمانخانه های آی. اس.

آی. را برادر خطاب می کند و آنها را با همه درنده خوئی، جنایات و با همه قساوت و خشونت شان، باوجودی که بر زانو های شقی ترین دشمن ما با ناز و غرور، مانند کودکی که بر زانوان دایهٔ مهربان غنوده و به خواب خوش رفته است، سر نهاده اند و به دستور آنها خون هزاران هموطن ما را می ریزند و تیشه بر ریشهٔ خود و مردم خود می زنند، برادر خطاب می کند.»

جؤمله دونه اوږده، پېچلې او مروړلې ده، چې ما غوندي لږ لوستي یا نالوستي کسان یې په پوهېدو کې لوی ربړ او عذاب ویني.

د لیکوال د ټولې جؤملې اساسي هدف په واقعیت کې دغه خبره ده: «کرزی ولي هغه جانیان د وروڼو په نامه یادیږي، چې د آی. ایس. آی. په مېلمستونو کې مزې او چړچې کیږي.»

مګر د دغه لنډ مفهوم د بیان دپاره یې د اصلي د جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ څو نوري خپلواکي او ناخپلواکي معترضه فقرې هم کوترم کړې دي، چې له لوستونکو څخه سدوبد ورک کیږي[۹]. البته، په دې جؤمله کې د «برادر خطاب می کند» خبر دوه پلا تکرار سوئ دئ. اوله پلا د لومړۍ خپلواکې جؤملې د «خبر» په توګه راوړل سوئ دئ، دوهمه پلا یې بیا له همغه مبتدا (کرزی) سره د ګرده پاراګراف دوَله جؤملې د «خبر» په توګه کښېښلئ دئ. ښایي و دې تکرار ته ئې پام نه یي اوښتئ. البته، زموږ بحث هم د «برادر خطاب می کند» د تکرار په اړه نه، بلکې د دوهم یا وروستي «برادر خطاب می کند» په باره کې دئ، چې له خپل «مبتدا» څخه په میلو او فرسنګو لیرې لوېدلئ دئ.

راتلونکې پاراګراف دوَله جؤمله د یو بل دري ژبي لیکوال د هغې لیکنې وروستۍ برخه ده، چې په واشنګټن کې د افغان سفیر د وهلو ډبولو په اړه لیکلې ده. په ډېرې خواشینۍ سره باید و وایو، چې دا جؤمله هم په داسې پېچلې او بې خونده بڼه لیکل سوې ده، چې لوستونکي یې په مانا پوهېدنه کې سربداله کیږي. په بله وینا، لوستونکي په اسانۍ نه پوهیږي، چې جؤمله چیرې شرو سوې؛ چیرې ختمیږي؛ او تر ټولو مهمه خو لا دا چې پر څه موضوع بحث کیږي. ګران لوستونکي په خپله قضاوت کولای سي، چې په دې جؤمله کې د بې شماره خپلواکو او ناخپلواکو تبعي فقرو (جؤملو) کتارولو د اصلي جؤملې و فصاحت او بلاغت ته څونه زیان اړولئ دئ:

« فعلاً در عدم موجودیت آقای سفیر و آقای "زمری اعظمی" که پسر کاکای "جلالتمآب محترم حامد کرزی رئیس جمهور جمهوری اسلامی افغانستان" است و در بدماشی از خود نام و نشانی دارد که نمونه اش را در اخبار قبلی در رابطه به لت و کوب آقای قدیر نور یکی از دیپلوماتان این سفارت، با چشم سر مشاهده فرمودید و فعلاً در رخصتی های زمستانی به سر می برد، به زور لوی څارنوال، شخص آقای "محمد هارون الکو" از امور سفارت سرپرستی می نماید.»[۱۰]

داسې اوږدې، پېچلې او مبهمې جؤملې د پښتو او پارسي دواړو له شفاهي ادب سره هیڅ سر نه خوري. په دې حقیقت هم د هر هوښیار شخص ښه سر خلاصیږي، چې بې اولسې جوهره د یو قام ادب څه ارزښت لري؟ د پښتو

او پاړسي عام ويونکي په دونه فصاحت او بلاغت خبري کيي، چي ځوک يې په اروېدو نه مرېږي. تاسي ښه پام پر وکئ، د عامو خلگو په خبرو او مرکو کي همېشه جؤملې لنډي او يو له بله جلا يي. د هري جؤملې «مبتدا» او «خبر» ئې له ورايه ځرگند يي. په جؤملو کې د «مبتدا» او «خبر» دا وضاحت او روښانه اړېکې له اروېدونکو سره مرسته کيي، چي بې سرخوږي د متکلم يا ليکوال د خبري په سر، پای او ټول مضمون پوه سي؛ مثلاً: په پښتو کي د کوڅې او بازار يو سړی و بل ته داسي وايي: «په کور کي مو اوړه او غوړي خلاص سوي وو. نن سهار بازار ته ولاړم، چي را يې نيسم. په څو دوکانو کي مي وکتل. هر څه دونه گران وه، چي خوله نه په پوري کېدله. ناچاره مي يو څه واخيستل؛ او په ځغاسته بيرته کور ته راغلم.»

په اوله جؤمله کي د اوړو د خلاصېدو خبره سوې ده. په دوهمه جؤمله کې د رانيولو ځرنگوالی بيان سوئ دئ. په دريمه جؤمله کې د نرخ و نوا مسأله ويل سوې ده. په ځلرمه جؤمله کې د قيمتو د گرانۍ پر موضوع ټينگار سوئ دئ. په پينځمه جؤمله کې د اوړو رانيولو خبره ياده سوې ده؛ او په شپږمه جؤمله کي کورته د ستنېدو موضوع راغلې ده.

عام پاړسيوانان هم په خپلو مرکو کي همدغه رنگه ساده، اسانه او خوږې جؤملې کاريي؛ مثلاً دوی يو و بل ته داسي وايي: «دخترکم در امتحان کانکورِ اِمسال به فاکولتهٔ حقوق کامياب شد. همه دوست ها از کاميابی اش بسيار خوش شدن (شدند). اگه (اگر) رضای خدا بود، چار سال بعد قاضي يا څارنوال خواهد شد...»

په داسي حال کي، چي زموږ عام اولس په دونه فصاحت او بلاغت خبري کيي، موږ ژورناليستان، ليکوال، ژباړونکي او څېړونکي د څه دليل او منطق له مخي د اوږدوالي، پېچلتيا او اِبهام لار اخلو؟ ايا په ليکنه کي لنډي، ساده او اسانه جؤملې د ليکوال د ناپوهۍ او ابتذال استازيتوب کيي؟ ايا ژوري ماناوي، لوړ خيالونه او پياوړي دلايل په ساده او اسانه جؤملو کي نه سي راتلای؟ ايا ريښتيني ادب هغه نه دئ، چي د خلگو په ساده او خوږه ژبه ليکل سوئ يي؟ ايا موږ په اصطلاح فرهنگيان او پوهنتونيان نه سو کولای، چي خپلو عوامو غوندي هر څه په ساده، اسانه او خوږه ژبه وليکو؟ کې نه سو ليکلای، ايا د دې خبري مانا له ورايه دا نه ده، چي موږ په اصطلاح ليکوال اصلاً د ليکوالۍ په چل او چم ښه نه پوهېږو؟ ځکه فصاحت او بلاغت خو د ليکوالۍ تر ټولو لومړی او اساسي رُکن دئ. نېخه د هغې مقالې يا رسالې د ليکلو گټه په څه کي ده، چي لوستونکي يې په پوهېدو کي ربړونه او کړاونه گالي؟

ځيني ژورناليستان، ليکوال او څېړونکي د لرغونو شاعرانو په دود په ليکنو کي اوږدې، پېچلي او مبهمي جؤملې د خپل کمال او استادۍ نخښه گڼي؛ حال دا چي په مبهمو، پېچلو او بې سر و پايه جؤملو کي د فصاحت او بلاغت ټول اصول تر پښو لاندي کيږي.

يو وخت په کابل کي يوه دوست را ته و ويل: «هارون جانه! ستا انگرېزي خط هم بد

نه دئ؛ خو په هر څه يې سرې پوهېږي. د پلاني داسي انګرېزي خط دئ، چي هر څوک يې په اسانۍ نه سي ويلای.» ما ور ته وخندل. ول (ويل) ولي دي وخندل؟ مجبوره سوم، چي سر يې ور خلاص کم. ما يې هم د جان په زياتولو سره نوم واخيستئ؛ او ورته و مي ويل: «ګوره! ته په خپله وايې، چي پلاني داسي ترلئ خط کاږي، چي هر څوک يې په اسانۍ نه سي ويلای. ده په پوره معصوميت را غبرګه کړه: هو هر څوک يې نه سي ويلای. ما ول: خط او کتابت خو د نورو د پوهېدو دپاره کيږي. کله چې نور خلګ و نه لوستلای سي، بيا نو د هغه خط ارزښت او ښېګڼه په څه کي ده؟ ما ته خو داسي خط کټ مټ د مېخي خط مثال لري. البته، مېخي خط د څو زره کاله مخکي انسانانو د مغز او فکر محصول ؤ. د هغې زمانې خلګو په ډېري اسانۍ سره ليکلای او لوستلای سوای؛ خو د دې ښاغلي خط څو زره کاله وروسته په داسي مېخي خط کښل سوئ دئ، چي حتا د ده خپل ملګري او همکاران يې هم په اسانۍ نه سي لوستلای. وروسته مي ور ته و ويل: ځيني ډاکټران هم خپلي نۆخسې (نسخې) په داسي خط کاږي، چي نور ډاکټران او دوا جوړونکي يې په اسانۍ نه سي لوستلای. داسي نۆخسه بايد ارۆمرۆ د ډاکټر و قراردادي دواخانې ته يو وړل سي. کله کله خو يې قراردادي دواساز هم په لوستلو کي د زړه وينې خوري. دا خبري چي مي ور ته وکړې، اشنا مي قانع سو چي ريشتيا هم په ګډوډ او ناخوانا خط کي هيڅ هۆنر (هنر) او کمال نسته.

زموږ ژورناليستان، ليکوال او محققان هم بايد په دې روښانه حقيقت سر خلاص کي، چي مبهمي او معما ډَوله اوږدې جۆملې نه يوازي د يو چا د کمال او هۆنر نخښه نه ده، بلکي بر عکس يې د ليکوالۍ له کمزوريو او نيمګړتياوو څخه ګڼل کيږي. ليکوال بايد تر خپله وسه کوښښ وکي، چي خپلي خبري، نظريې او پيغامونه په ډېره ساده او خوږه ژبه تر لوستونکو ور و رسيي، نه دا چي د بې سروپايه پېچلو او مروړلو جۆملو په وړاندي کولو سره يې د ګنګسۆلو او سر بداله کولو موجبات برابر کي.

د ليکني په پای کي و دې پوښتني ته د جواب موندلو کوښښ کوو، چي دا ناوړه دود و دستور زموږ ژبو ته له کمه ځايه را نازل سوئ دئ؟ ځکه مخکي مو وليدل، چي د پښتو او پاړسي په شفاهي خبرو کي هيڅ مشکل نسته.

پښتو او پاړسي ته دا ناوړه دود و دستور په واقعيت کي د ځينو ژباړونکو، ليکوالو او څېړونکو د فرهنګي اثارو له لاري راغلئ دئ. په خواشينۍ سره دې فرهنګيانو د خپلو علمي او ادبي اثارو په ليکنه کي د خپل اولسي ادب و روح او جوهر ته پام نه دئ کړئ. د پردو شاعرانو، ژورناليستانو، ليکوالو او محققانو ليکني يې ټکی په ټکی تَرجَمه کړي دي. کله کله يې د ټکي په ټکي ترجمې تر څنګ د پردو ژبو لغتونه او اصطلاحات، ګرامري قاعدې، نحوي سکښتونه او اختصاصي جوړښتونه هم په پټو سترګو و خپل ادب ته را نقل کړي دي. دا اومه او کره لار وروسته په فرهنګي ټولنو او حلقو کي دونه پالل سوې ده، چي په پای کي د ليکني په يوه پاخه او منلي سبک اوښتې ده. تاسيْ د پاړسي ژبې د زياترو

معاصرو ليكوالو جؤملې وګورئ، په تقريباً هره جؤمله کې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ څو نوري خپلواکي يا ناخپلواکي معترضه فقرې کتار سوي يي. لوستونکي يې بايد د مانا اخيستلو دپاره تر څو فرعي فقرو يا جؤملو پښه واړيي؛ او ځان «خبر» ته ورسيي. که نه نو په دې يې سد نه رسيږي، چي آدم خان نر ؤ که ښځه؛ موړ ؤ که وږی؛ سپور ؤ که پلی؟

راتلونکې پاراګراف رقمه جؤمله وګورئ! «محقق» يې مبتدا ، «چه خواهد کرد» يې خبر دئ؛ خو د جؤملې د دې دوو مهمو برخو تر منځ يې څه داستانونه او بابولالي نه دي بيان کړي؟ «محقق با رای قريب به ۸۰ درصدی مردم هزاره و شکست سنگين رقيب کهنه کار و کارکشته و محافظه کارِ خويش استاد خليلی و ديگر افراد و اشخاص مطرح در دنيای سياست هزارگان – سرور دانش، حبيبه [حبيبه] سرابی، صادق مدبر و برخی ديگر ه نيز ادعای رهبری دارند - چه خواهد کرد؟»(۱۱)

و راتلونکي انګرېزي جؤملې ته هم ښه ځير سئ. ليکوال يې تر ما سل چنده پوه او هوښيار دئ. همېشه يې عالمانه تحليلونه او څېړني په مينه او ځوَب لولم؛ خو سره له دې يې کله کله په ليکنه کي داسي جؤملې هم تر سترګو کيږي، چي د فصاحت او بلاغت له اړخه کمزوري دي. د دې جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ داسي خبري او بيانونه تخته سوي دي، چي د لوستونکي ذهن په کاملاً نورو خبرو کښېباسي. کله چي د لوستونکي ذهن په دغه راز فرعي او اضافي خبرو کښېوتئ، بيا خو يې د اصلي جؤملې «مبتدا» او «خبر» کوږټ له ياده وزي. نتيجه دا را وزي، چي د ټولي جؤملې تر لوستلو، حتا تکرارولو وروسته هم په دې نه پوهېږي، چي آدم خان نر ؤ که ښځه؟ دا خبره هم له شکه وتلې ده،کله چي د ليکوال پيغام په اسانۍ سره تر لوستونکو و نه رسيږي، لوستونکي هم د هغه له لوستلو سره مينه او لېوالتيا نه ښيي. نتيجه يې تاسي په خپله اټکلولای سئ. د انګرېزي ليکوال داوږده او بې خونده جؤمله وګورئ:

"Durand Line, Greater Tajikistan, Federally Administered Tribal Agency (FATA), Foreign-Drawn, Ethnically Biased, Extra-Legal, Artificial Demarcations The 'Durand Line' originally posed as a 'line separating or demarcating spheres of influence' between British India and Czarist Russia during the ۱۹th century, has evolved as a current international boundary and ongoing fodder for endless and contentious debate."(۱۲)

البته، په انګرېزي او ځينو نورو اؤرؤپايي ژبو کي د «مبتدا» او «خبر» تر منځ د ځينو معترضه خبرو او کيسو را وړل تقريباً عام او منلی دود دئ. په خواشينۍ سره دا دود و دستور زموږ د ملي ژبو له شفاهي ادب او نحوي جوړښتو سره چندان اړخ نه لګيي. و دې جوملې ته وګورئ:

"Speaking in Brussels today, President Obama went on a lengthy diatribe about how the decade-long US occupation of Iraq, which left roughly a million people dead and the entire region awash in al-Qaeda

was nowhere near as bad factions, a thing as Crimea".[۱۳]

په دې نسبتاً اوږده جؤمله کې «Speaking in Brussels today» ناخپلواکه فرعي فقره يا جؤمله ده. اصلي جؤمله په واقعيت کې د امريکا له خوا د عراق د لس کلن اشغال په باره کې ده، چې «President Obama» يې «مبتدا» دئ. د عراق له نامه سره دا معترضه فقره پيل سوې ده: «which left roughly a million people dead and the entire region awash in al-Qaeda factions». د اصلي جؤملې «خبر» تر دې معترضه فقرې وروسته، په دې ډَول راغلئ دئ: «was nowhere near as bad a thing as Crimea»

که دا پراګراف ډَوله جؤمله په پښتو يا پارسي کې هم د يوې جؤملې په بڼه و ژباړل سي، بېله شکه به تر انګرېزي ډېره اوږده، مروړلې او بې خونده يي؛ ځکه هر څونه چې د اصلي جؤملې د «مبتدا» او «خبر» تر منځ، معترضه فقرې کوترَم سي، په هغونه اندازه د لوستونکي ذهن پر بېلابېلو خبرو او موضوعاتو وېشل کيږي. دا پاشلتيا او ګډوډي نه يوازې د هغه پر ذهن اضافي بار ايږدي، بلکي کله کله خو يې لا د اصلي موضوع په پېژندنه کې پر ناسمه لار بيايي. کله چې د جؤملې اصلي موضوع ورکه سوه، د ليکوال پيغام هم د لوستونکي و ذهن ته لار نه سي موندلای. په دې ترتيب، د ليکوال او لوستونکي دواړو زيار او زحمت بې نتيجې پاتيږي. موږ بايد تل له دغه راز ابته زيار او کوښښ څخه لاس واخلو.



## لمنليکونه:

۱. http://en.wikipedia.org/wiki/Subject_Object_Verb

۲. John E. Warriner, Mary E. Whitten & Francis Griffith, English Grammar and composition (Harcourt, Brace & World Inc., ۱۹۵۸) ۷۱.

۳. دکتر مسعود انصاری، روش نو در دستور زبان انگليسی (تهران: مؤسسهٔ مطبوعاتی فرخی، ۱۳۴۵) ۳۴- ۳۵.

۴. John E. Warriner, Mary E. Whitten & Francis Griffith, English Grammar and composition (Harcourt, Brace & World Inc., ۱۹۵۸) ۸۱- ۸۲.

۵. http://larawbar.org/details.php?id=۳۰۴۹۸&date=۲۰۱۲-۰۲-۰۸

۶. http://www.taand.com/archives/۲۴۲۵۴

۷. http://www.afghan-german.Net/upload/Tahlilha_PDF/m_farani_satehinageri_mortabet_ba_zaban_۱.pdf

۸. http://afgazad.com/Eateqaady-۲۰۱۴/۰۱۱۳۱۴-Sadied-Cheraa-Barkhi-Az-Soal-Haa-۶.pdf

۹. http://afgazad.com/Siasi-۱۲/۰۴۲۱۱۲-Sadied-Taliban-Raa-Hamchenaan-Baraadar.pdf

۱۰. http://afgazad.com/Gozaaresh-Haa/۰۲۱۱۱۲-Khanenda-P-Baaz-Ham-Eftezaah.pdf

۱۱. http://www.taand.com/archives/۲۴۷۳۶

۱۲. http://larawbar.net/۴۰۲۳۸.html

۱۳. http://news.antiwar.com/۲۰۱۴/۰۳/۲۶/obama-paints-crimea-secession-as-worse-than-iraq-war/





استاد عبدالباري جهاني/امریکا

# سیداحمد بریلوي او هندوستاني مجاهدین

اوله برخه

پښتنو له انګرېزي استعمار سره زیات و کم یوه نیمه پېړۍ جګړې کړي دي. په دې جګړو کې ئې تر سلو زرو زیات شهیدان ورکړي، کورونه او ښارونه ئې سره لمبه سوي او تباه سوي دي، او د خپلو وینو او سرونو په بیه ئې د استعمارګرانو د آرام خوبونه حرام کړي دي. په دې تحریکونو کي یو هم د سید احمد بریلوي او هندوستاني مجاهدینو تحریک دئ، چي زیات و کم اتیا کاله ئې دوام وکړ او کله کله به ئې د مجاهدینو د لښکرو شمېر تر پنځه لس زرو تنو واوښت او د انګریزانو د جنرالانو په سطح کسان به پکښي ووژل سول. د سید احمد بریلوي تحریک ته خپلو استعمارګرو دښمنانو او هغو ملایانو او پیرانو چي د دغه تحریک په وجه ئې خپلي ګټې په خطر کي لیدلې، د وهابیانو نوم ورکړ او ځیني تاریخ لیکونکي ئې اوس هم په دغه نامه پېژني.

سید احمد بریلوي د ۱۷۸۶ کال د نوامبر په میاشت کي د هند د اتارپردیش د ایالت د رای بریلي په سیمه کي د سید محمد عرفان په کهاله کي، چي په خپله یو صوفي او یوې مشهوري صوفي کورنۍ ته منسوب وو، وزېږېدی. پلار ئې په ۱۷۹۹ کي، چي سیداحمد ایله دیارلس کلن وو،

وفات سو. سید احمد د ځوانۍ د پیل له کلونو څخه د اقتصادي ستونزو سره مخامخ سو. د څه وخت له پاره له خپلو ځو تنو خپلوانو او ملګرو سره د کار د پیدا کولو له پاره لکنهو ته ولاړ خو لږه موده وروسته ئې د روحاني لاري د تعقیبولو له پاره، چي د وړوکوالي څخه ئې مینه ورسره درلوده، د ډهلي پر لور مخ ونیوی او د هند د مشهور صوفي او عالم شاه عبدالعزیز په خدمت کي حاضر سو. د سید احمد بریلوي نیکونو او پلار د شاه عبدالعزیز د نیکه شاه عبدالرحیم او پلار شاه ولي الله سره د پیرۍ او مریدۍ اړیکي درلودل، نو ځکه د هغه په خدمت کي د بریلوي حاضرېدلو او منل کېدلو کومه خاصه ستونزه نه درلوده. سید احمد په ډهلي کي تر لږ وخت تېرولو وروسته، د شاه عبدالعزیز پر لاس بیعت وکړ او هغه په دریو مشهورو صوفي طریقو نقشبندیه، قادریه او چشتیه کي شامل کړ. تر بیعت وروسته خپل پیر هغه ته د مراقبې بېل بېل درسونه ورکړل او کله چي ئې د شغل برزخ په نوم وظیفه ورته ښودله او له سید احمد څخه ئې وغوښتل چي د مراقبې په وخت کي دي خپل شیخ په نظر کي ولري نو هغه سمدستي پر شاه عبدالعزیز باندي اعتراض وکړ چي د دې کار او بت پرستۍ توپیر په څه کي دئ. ځکه چي د بت پرستۍ په صورت کي یو سړی ډبري ته سجده کوي او په هغه بل صورت کي یوه تصویر ته د زړه په تل کي ځای ورکوي، درناوی ئې کوي او پرستش یې کوي.

شاه عبدالعزیز ډېر کوښښ وکړ چي خپل نوي مرید ته قناعت ورکړي خو هغه د قرآني ایتونو، احادیثو او د اجماع امت په استناد د دلایلو غوښتنه کوله. شاه عبدالعزیز په پای کی خپل مرید ته تسلیم سو او هغه ته ئې وویل چي لوی خدای تاته ولایت انبیا در بخښلی دئ. (Sayyid Ahmad pp ٦٢-٦٣)

سید احمد د دوو کالو له پاره خپلي پلرنۍ سیمي رای بریلي ته ولاړ او له هغه ځایه د ټونک د نواب امیر خان په پوځ کي، چي د ده مشر ورور سید ابرهیم خدمت پکښې کاوه شامل سو. د ټونک د نواب سره ئې څو ځله په پوځي عملیاتو کي برخه واخیستله او دا د هغه په راتلونکو پوځي عملیاتو کي ډېر ګټور ثابت سول. سید احمد تر ۱۸۱۸ کال پوري د امیر خان په پوځ کي خدمت وکړ او بیرته ډهلي ته ستون سو.

که څه هم چي په هند کي پخوانیو مشهورو صوفیانو د اسلام په تبلیغ، ترویج او پراخولو کي تر جنرالانو، سپه سالارانو او پاچاهانو ډېر رول لوبولی وو، خو دا وخت صوفیزم په هند کي تر ټولو د فاسدې مؤسسې بڼه غوره کړې وه او د دې پر ځای چي خلک سمي لاري ته وبولي د بدعتونو

او خرافاتو په رواجولو کي ئې ونډه اخيسته. سيد احمد دغه صوفيان په کلکه وغندل، (هغه کتاب: ۸۵مخ).

کله چي ځيني پيران او شيخان چي د اسلام او شريعت په خپرولو کي ئې ډېره زياته ونډه درلوده، وفات سول نو ځای به ئې زامنو ته پاته سو. د پيرۍ او مرشدۍ دغه ميراثي شکل دغي مؤسسې ته يو ډول تجارتي شکل ورکړ. د شيخانو زامنو د خانقاه څخه د خپل شهرت او پيسو تر لاسه کولو له پاره کار اخيستی او ورو ورو د فساد خواته روان سول، (هغه کتاب: ۲۹مخ).

له بلي خوا څرنگه چي مسلمانان په هند کي په اقليت کي وه، نو د ډهلي او نورو سيمو د مسلمانو واکدارانو د کمزوره کېدلو سره سم هندوانو تعرضي دريځ ونيوی، او يو شمېر مسلمانان ئې جذب کړل. هندوانو د مسلمانانو ښځي په زور په نکاح کولې او خپل مذهب ته ئې اړولې. يو هندو ليکوال ليکي چي په يوه شاهي فرمان کي د مسلمانو نجونو دغه راز په زور واده کول غيرقانوني بلل سوي دي او په هغه فرمان کي يوازي د کشمير په سيمه کي دغه راز څلورو زرو جبري ودونو ته اشاره سوې ده، (هغه کتاب: ۳۳).

دغه راز مسلمان سويو هندوانو له هندو نجونو سره ودونه کول او هغوی به خپل مذهبي رسوم او عقايد ورسره راوړل او مېړونو به ئې هم، چي له اسلام سره ئې ژوره اشنايي نه درلوده کرار کرار د هغوی لاره غوره کړه.

دا بايد وويل سي چي په ډېرو زياتو وړو کليوالي سيمو کي مسلمانانو د هندوانو د بتانو عبادت کاوه. د تنگسې په وخت کي به ئې د دې پر ځای چي د خدای څخه مرسته وغواړي مړو او ژونديو پيرانو ته به ئې پناه وروړه. دوی يوازي د پيرانو په معجزو او کرامتونو باندي عقيده درلوده. داسي مسلمانان لا هم وه چي خپل هندو نومونه ئې ساتلي وه او ټول هندو رسوم ئې پر ځای کول. د هندوانو د ډيوالي او ډشيرا په نوم مراسم ئې پالل او د هندوانو د خدای کريشنا د زېږېدني ورځ جنم اشتمي ئې لمانځله، (هغه کتاب: ۳۶مخ).

په دغه راز سختو حالاتو کي، چي له يوې خوا مسلمانان د هندوانو د جشنونو او ورځو په لمانځلو لگيا وه او حتی د هغوی د بتانو څخه به ئې مرستي غوښتلې. بلي خوا ته به د پيرانو په عبادت لگيا وه او ټول وخت به ئې په زيارتونو او قبرونو کي تېرېدی، د پيرانو او شيخانو په لنگرونو کي تجارت روان وو او د بيسوادو کليوالو او ښاريانو له ناپوهۍ څخه گټي اخيستل کېدلې. پيرانو او شيخانو د دې پر ځای چي خلک سمي لاري ته وبولي نور ئې هم د خرافاتو خوا ته تشويقول او خپلي گټي ئې ور څخه اخيستلې.

سید احمد په صراط مستقیم کي، چي د هغه د نصحیتونو او خطبو مجموعه ده، او د هغه مرید او ملګري مولوي شاه اسمعیل را غونډ کړي دي، دغو پیرانو او شیخانو ته صوفی نما ملحدین ویلي دي. دی وایی د حق د لاري ډېر لوی خنډ هغه صوفي شعاره ملحدین دي چي چي د شریعت سره له مخالفت څخه هیڅ ببره نه لري، بلکي د شریعت سره مخالفت ئې خپله لاره ګرځولې وي. په خلکو کي ئې داسي بدعتونه رواج کړي وي چي اکثر ئې د شرک معادل وي، (صراط مستقیم: ۹۰مخ).

سید احمد ډهلي ته د رسېدلو سره سم په اکبر آبادي مسجد کي، چي مخکي ئې هم هستوګنه پکښي کړې وه، ځای ونیو. دلته د شاه عبدالعزیز د کورنۍ دریو مهمو غړو مولوي شاه اسمعیل، مولوي عبدالحي او مولوي محمد یوسف له هغه سره بیعت وکړ او په دې توګه ئې ډېر ژر شهرت د ډهلي څخه بهر نورو لیری او نیژدې ځایونو ته خپور سو. د سید احمد بریلوي پر لاس باندي له ډهلي څخه نیولې تر کلکتې، حیدراباد او پونې پوري په لس هاوو زرو او وروسته په سل ګونو زرو کسانو، چي د هغه په څېر یوه رښتیني مرشد ته تږي ناست وه، بیعت وکړ. هغه په کال ۱۸۲۱ کي د خپلو دریو سوو ملګرو سره د حج په نیت روان سو او دې سفر ئې

څه باندي دوه کاله ونیول. د حج دغه سفر د سید احمد په ژوند کي ډېر مهم دئ او د هغه پر راتلونکو تبلیغاتو او عملیاتو باندي ئې ژوره اغیزه درلودلې ده. ډېر لوېدیځ محققین په دې عقیده دي چي پر سیداحمد په دغه سفر کي د وهابي عقایدو تر اغېزې لاندي سو. په داسي حال کي چي د هغوی دغه عقیده په دوه لحاظه غلطه ده. لومړی دا چي هغه صراط مستقیم د حج تر سفر مخکي ترتیب کړی او خپل اصلاحي نظریات ئې پکښي راوړي وه او په مکه شریفه کي د هغه مرید مولوي عبدالحي په عربي ژبه ترجمه کړ. په مکه شریفه او مدینه منوره کي علماوو د هغه ډېر زیات قدر وکړ. او دوهم دا چي مکې شریفي ته د سید احمد د سفر پر مهال د سعودي عربستان مقدس ښارونه د عثماني ترکانو تر کنټرول لاندي وه. ټول نجدي وهابیان تعقیبېدل او بندیانېدل. نو په داسي حالت کي دا لیري خبره ده چي سیداحمد به د هغه ځای له وهابي علماوو سره تماسونه ټینګ کړي او د هغوی تر اغېزې لاندي به راغلی وي. حقیقت دا دئ چي دا دواړه تحریکونه په یو ډول مشابه شرایطو کي منځته راغلي دي. دواړو پر قرآن شریف او احادیثو باندي تکیه کول. دواړو ویل چي د اسلام ټاکلي اصول دي رعایت سي. په دې اصولو کي د خدای پر یووالي باندي ټینګار سوی

دئ او له بدعتونو څخه د پرهېز کولو توصیه کوي. د عبدالوهاب کتاب التوحید او د شاه اسمعیل تقویت الایمان پر اساسي اصولو باندي د ټینګار په برخه کي تقریباً یو شان نظر لري، ( The Wahabi Movement in India pp ۲۱- ۲۲)

سید احمد په ۱۸۲۴ کال کي بیرته هند ته ستون سو. دوه کاله ئې د هند بېلو بېلو سیمو ته سفرونه وکړل او دا ځل ئې ټول وخت د هند له خاوري څخه د مسلمانانو تر کنټرول لاندي سیمي ته د هجرت کولو له پاره په تبلیغ کولو تېر کړ. فتحپور، ګوالیار او ټانک ته ئې سفرونه وکړل. په ګوالیار کي مهاراجا دولت راو سیندیا په خپل قصر کي مېلمه کړ او هلته ئې د هغه له اخبني هندو راو سره ډېري اوږدې خبري وکړې، او د مرستو وعدې ئې تر لاسه کړې. وروسته سید احمد له سرحد څخه هندو راو ته یو ډېر مهم لیک واستاوه. د ټانک نواب امیر خان او د هغه زوی وزیرالدوله د سید احمد ډېر ټینګ ملګري وه او د هغه له تحریک سره ئې راز راز مرستي وکړې. سید احمد له ټانک څخه د راجپوتانې د دښتونو، سیند او بلوچستان له لاري د ۱۸۲۶ کال په نوامبر کي پېښور ته ورسېدی، (وهابي: ۴۳ مخ).

د سید احمد سره نه د سیند میرانو ملا وتړله او نه د شکارپور حکمران سید محمد کاظم شاه د مرستي وعده ورسره وکړه بلکي هر یوه به د هغه تحریک ته د شک او تردید په سترګه کتل. سید احمد وروسته کندهار ته سفر وکړ، خو نه د کندهار سردارانو له هغه سره ملا وتړله او نه د هغه ښار علماوو د سید احمد خبري واورېدلې او ټول وخت ئې د هغه د عقایدو او نظریاتو او د سیکهانو په مقابل کي د جهاد د امکاناتو په باره کي په بحثونو تېر کړ. سید بالاخره کابل ته ولاړ. که څه هم چي د کابل خلکو د هغه ډېر زیات درناوی وکړ خو سرداران په خپلو کي په داسي شخړو لګیا وه چي د سید احمد د مذهبي اصلاحاتو او د جهاد خبرو ته ئې د توجه کولو وخت نه درلود. سیداحمد په کابل کي تر پنځه ځلویښتو ورځو تېرولو وروسته د پېښور پر لور روان سو او په هر ځای کي ئې د سیکهانو پر ضد تبلیغ کاوه ، په پیښور کي تر لږ تم کېدلو وروسته په هشنغر کي دېره سو، (نوای معارک: ۷۸- ۷۹ مخونه).

په هشنغر او نوښار کي د سید احمد بریلوي د دېره کېدلو سره سم له هري خوا پښتانه ورته راټول سول او تر هر چا مخکي د سیکهانو مهاراجا رنجیټ سینګهـ عکس العمل وښود. هغه د خپل جنرال بُد سینګهـ په مشری لس زره عسکر ورولېږل. د سیکهانو او سیداحمد د مجاهدینو ترمنځ لومړی جنګ نوښار ته نیژدې په

اکوړه کي وسو. سید احمد پر سیکهانو باندي د شپې یرغل وکړ او پنځه سوه عسکر ئې ورځخه ووژل، خو څرنګه چي هم د مجاهدینو شمېر ډېر کم وو او هم ئې ښې وسلې نه درلودلې نو د سیکهانو په متقابله حمله کي ئې ماته وخوړه.

سید احمد د دې جګړې څخه لږ وروسته د هند د مشر ښادي خان یوسفزي په بلنه په هند کي دېره سو. ښادي خان او د هغي سیمي ځیني نورو خانانو غوښتل چي د سید احمد له مجاهدینو څخه د لوټ او تالان له پاره کار واخلي او د سیکهانو پر تجارتي مرکز هزرو باندي ئې یوه لویه حمله وکړه. سید احمد د چور او تالان له پاره خپل ملک نه وو پرې ایښی بلکي لوړ اهداف یې درلودل. هغه که هر څومره پښتانه له دغه راز حملو څخه منع کول هغوی منع نه سول. سیکهانو په متقابلو حملو لاس پوري کړ او که له پښتنو قبایلو سره د مجاهدینو ملاتړ نه وای ښایي ډېر درانه تلفات ئې لیدلي وای. دې پیښې سیداحمد دې حقیقت ته متوجه کړ چي د ده او قبایلي خانانو د اهدافو تر منځ ډېر زیات توپیر موجود دئ، او په حقیقت کي همدغه د اهدافو توپیر وو چي په راتلونکو پوځي عملیاتو کي ئې محاسبې خرابولې. سید احمد فیصله وکړه چي د جهاد رهبري مستقیماً په خپل لاس کي واخلي او له دغه ځایه څخه ئې خپل ځان امام اعلان کړ. د امامت له اعلان سره سم د پښتنو ځینو مهمو مشرانو او اتیا زرو قبایلي خلکو له هغه سره بیعت وکړ. په دې بیعت کي د پېښور سرداران یارمحمد خان او پیرمحمد خان هم شامل وه. سید احمد یو ځل بیا پر نوښار باندي، چي بُدسینګهـ پکښي دېره وو، حمله وکړه. خو د پېښور د سردارانو د خیانت په وجه ئې ماته وکړه او پنجتار ته ولاړ، ( Wahabi Movement pp ۴۶- ۴۹).

سیداحمد د سوات او بونیر سیمو ته سفرونه وکړل، په پښتني قبایلو کي ئې د جهاد له پاره تبلیغ وکړ. د کشمیر، کاشغر او بخارا مشرانو ته ئې لیکونه ولیږل. شاه اسمعیل امب او سیتانې ته سفرونه وکړل او په دې ترځ کی ئې د شینکیاري په سیمه کي د سیکهانو یوه لوی لښکر ته ډېره سخته ماته ورکړه او ښې اولجې ئې ترلاسه کړې. خو سیداحمد د پېښور له سردارانو سره د حساب تصفیه کولو ته ځکه مجبور وو چي هم ئې د ده په مقابل کي پښتانه قبایل پارول او هم ئې د هغو مجاهدینو پر کاروانونو او مهماتو باندي حملې کولې چي د هندوستان څخه د سید احمد سره د مرستو له پاره را روان وه. سید احمد د ۱۸۲۸ کال د مي په میاشت کي د اتمانزو په جنګ کي د پیښور سردارانو ته سخته ماته ورکړه خو د پېښور د نیولو پلان ئې ځکه پریښود چي بیا هم ځیني قبایلي

مشران وتښتېدل او سید احمد ته معلومه سوه چې د ده د عملیاتو د ناکامېدلو یو علت دا دئ چې خلک، په تیره بیا قبایل، د ده د جهاد په اهدافو نه پوهېږي. سید احمد د ۱۸۲۹ کال د فبروري په میاشت کې په پنجتار کې یوه لویه مذهبي غونډه را وبلله او په هغې کې فتح خان پنجتاري، د زیدي اشرف خان او د هنډ ښادي خان برخه درلوده.

ښادي خان ډېر ژر د سیکهانو ملګری سو او هغوی ته ئې پر پنجتار باندي د حملې بلنه ورکړه. د سیکهانو حمله بریالۍ نه سوه او سید احمد د هنډ ښادي خان ته د سزا ورکولو فیصله وکړه. پر هنډ باندي ئې حمله وکړه او ښادي خان په جنګ کې ووژل سو، (Wahabi Movement P ۵۲).

بیلیو وایي چې ښادي خان د هنډ په جنګ کې نه دئ وژل سوی بلکې سیداحمد د جنګ څخه، ښادي خان ته د سزا ورکولو له پاره، د هنډ پر لور وخوځېدی سید احمد سره په دې عملیاتو کې د چارغولې ملکان میربابو او مبین هم ملګري وه. د ښادي خان او د سید احمد د لښکرو ترمنځ نښته وسوه او سید احمد د روغي جوړي غوښتنه وکړه، او د سوات داخوند صاحب په منځګړیتوب یې له هغه سره سوله وکړه، او وروسته یې ونیوی او وې واژه، A General Report on the Yusafzais p ۸۷

له دغه ځایه څخه سید احمد بیا د پنجتار خوا ته ولاړ او هلته ئې فتح خان ډېر تود هرکلی وکړ. فتح خان د سید احمد بریلوي د تحریک سره ډېري زیاتي او پر وخت مرستي وکړې او د سیداحمد د تحریک په وجه ئې قدرت هم ډېر زیات سو. د رنجیت سینګه د زور او زرو او خانانو او قبیلوي مشرانو تر منځ د بې اتفاقیو د اچولو د پالیسیو له امله ډېرو خانانو کمزوري وښودله خو یوازي فتح خان د هغه په مقابل کې لکه غر ودرېدی او کله چې رنجیت سینګه هغه ته د دریو لکو روپیو د جاګیر او د ټولو یوسفزیو د خانۍ ورکولو پیشنهاد وکړ او له هغه څخه ئې په مقابل کې صرف د ښنانې په توګه په کال کې د یوه آس او یوه باز غوښتنه وکړه نو فتح خان په جواب کې ورته ولیکل چې آسونه او بازان د پاچاهانو په دربارونو کې د شتمنو نجباوو سره وي. زه یو غریب زمیندار یم؛ دغه راز شیان او تحفې نه لرم. خو که دي خوښه وي نو یوه ښه چاغه غوا یا غویی درلېږلای سم (یوه سیکه مشر ته د چاغ غوایي د استولو پیشنهاد ډېر سخت سپکاوی دئ)، (Settling of the Frontier p ۱۰۹). بیلیو لیکي چې د سید احمد تحریک په ډېرو پښتني قبایلي خلکو کې طرفداران پیدا کړل خو د هغه له

سختو مذهبي اصولو او مقرراتو سره قبايلو جوړه نه سوه کولای. او تر ټولو سخته خبره چې پښتنو ته د منلو وړ نه وه هغه دا چې سید احمد پښتانه مجبورول چې خپلې لوڼې او خويندې د هغه هندوستاني مجاهدينو ته واده کړي. سرکښ افغانان د هغه سره مخالف سول، او نور ئې چا پر خبره چنداني غوږ نه نیوی، ( A General Report PP ۸۷- ۸۸).

د بيليو خبري له غرضه خالي نه دي او ځيني نور انګرېز ليکوالان هم دا خبره تاييدوي چې د سيد احمد بريلوي په باب د بيليو دا ليکنه چې وايي د سيد احمد بريلوي استازو د پښتنو نجوني په زور ځانونو ته واده کولې پر آوازو او تورونو ولاړه ده. او دا هم نه ده معلومه چې د سيد احمد بريلوي په مقابل کي د ځينو خانانو مقاومت د هغه د اجتماعي اصلاحاتو په مقابل کي عکس العمل وو او که هغوی د خپلو خانيو د ګټو او مناسباتو څخه دفاع کوله، ( Settling the Frontier P ۱۰۲).

دا خبره ښايي پر ځای وي چې قبايلو ته به د سيد احمد ځينی ټينګ مذهبي مقررات زياتره د منلو وړ نه وه خو که د بيليو د خبرو سره سم د هغه پيروانو او استازو د پښتنو ښځي په وچ زور هندوستاني مجاهدينو ته واده کولای نو د پښتنو په محافظه کاره او پر عنعناتو باندي ټينګه ټولنه کي ئې د نونسمي پېړۍ تر دريمي لسيزي پوري په هيڅ توګه ژوند نه سوای کولای، او ښايي په لومړيو کلونو او حتی لومړيو مياشتو کي له منځه تللی وای. ځکه چې دوی په سيمه کي نه قومي اساس درلود، نه له چا سره په ژبه پوهيدل او پر دې برسېره لا د سوات د اخوند صاحب او د پېښور د علماوو له مخالفت سره هم مخامخ ول او د پېښور علماوو خو ئې يو ځل د کفر فتوا صادره کړې وه؛ او د سيکهانو او په وروسته کي د انګرېزانو په څېر قوتونو سره هم جنګېدل.

د سيد احمد بريلوي د تحريک د ماتېدلو علت له يوې خوا د قبايلي خانانو پرله پسې خيانتونه وه، چې زياتره ئې د لوټ، اولجو او خپل شخصي اقتدار له پاره جنګېدل، د قبايلي خلکو ناپوهي، چې د سيداحمد د جهاد د ماموريت په اهدافو نه پوهېدل او چې څه ئې خپلو مشرانو او خانانو ورته ويل هغه ئې کول. له بلي خوا سيداحمد او د هغه مجاهدين د داسي منظمو قواوو سره مخامخ سول چې د ده قوت له هغو سره په هيڅ صورت د مقايسې وړ نه وو. په لومړي سر کي د سيکهانو ډېر لوی او منظم پوځي قدرت، چې د سيد احمد ايله جاري مجاهدينو په هيڅ توګه مقاومت ورسره کولای نه سو او په وروسته کي د انګرېزانو پوځ، چې هم به ئې شمير زرهاوو ته رسېدی او هم په عصري وسلو او

توپونو سمبال وه، د مجاهدینو سره مخامخ سو. انګریزانو به د مجاهدینو د هري وړې حملې په مقابل کي د پښتنو واړه او لوی کلي سوځول، په سل ګونو او حتی په زرګونو تلفات به ئې ور اړول او هغوی مجبور وه چي د انګرېزانو سره د مجاهدینو پر ضد موافقتنامې لاسلیک کړي، او پر مجاهدینو باندي مخ را واړوي.

سید احمد او له هغه سره ملګري هندي مجاهدین د ډېرو عالي اهدافو له پاره جنګېدل. هغوی ته د هند په خاوره کي د ژوند تېرولو له پاره نسبتاً ارام شرایط برابر وه او زیاتره مشران ئې د ډېرو لویو اشرافي کورنیو غړي وه. هغوی پر ځان باندي د ژوند ښه شرایط په لوی لاس حرام کړي وه او د پښتونخوا په غرونو کي ئې د انګرېزانو له توپخانې او عصري وسلو سره ډغري وهلې. د سید احمد پیروانو د هغه له شهادت څخه وروسته زیات و کم اویاکاله خپل مقاومت او جهاد ته دوام ورکړ. په خپله انګرېزان هم په خپلو رپوټونو کي دې حقیقت ته اشاره کوي: "دا هندوستاني مجاهدین د مولوي عبدالله تر مشرۍ لاندي جنګېدل. د دوی شمېر په لومړي سر کي نهو سوو تنو ته رسېدی، چي اکثر ئې ډېر افراطي متعصب مذهبي خلک وه او هر وخت د خپل ژوند قربانولو ته تیار وه. یوازي د دغه ډول عقیدې خلک کولای سي چي په هندوستان کي خپل کورونه پرېږدي او په دغه سختو غرنیو علاقو کي دېره سي. دا کسان د هغو خلکو سره چي دوی ئې په منځ کي اوسېږي د ژبې، عاداتو او دلچسپیو له مخي ډېر زیات توپیر لري او د ژوند په هغو لږو وسایلو ګوزاره کوي چي مولوي ئې ورته برابروي. دوی په داسي شرایطو کي ژوند کوي چي په هیڅ توګه د هندوستان خلکو ته ورته نه دي... مولوي په خپله په دغو غرونو کي څلور کاله تېر کړل.دی د هغه مولوی عنایت علي خان وراره دئ چي موږ ته ئې په ۱۸۵۷ کال کي د نارینجي په علاقه کي ډېر زیات تکلیف راکړ، او ډېر لایق سړی وو".( Frontiers and Overseas Expeditions p ۲۵۲).

د ښادي خان خپلوانو او د هنډ نورو خانانو د پېښور سردار یارمحمد خان د سید احمد سره جنګ کولو ته وهڅاوه او د مرستو او سړیو ژمني ئې ورسره وکړې. خو سید احمد د زیدي په جګړه کي دې متحدو قواوو ته ماته ورکړه او یارمحمد خان، چي سید احمد د سیکهانو سره د هغه د ملګرتوب له امله یارو سینګه باله، د ۱۸۲۹ کال د سپټمبر په میاشت کي په جنګ کي ووژل سو.

د سید احمد بریلوي او یارمحمد خان هغه جنګ د نورالدین په یوه چاربیته کي، چي د فوکلوري سندري شکل ئې غوره

کړی دئ، ډېر ښه بیان سوی دئ. په دې چاربیته کې د ډاکټر بیلیو د نظر په خلاف، چې وایي پښتانه قبایل او عام خلک د سید احمد بریلوي او د هغه له اصلاحاتو سره مخالف وه، د سید احمد بریلوي محبوبیت څرګند دئ.

روان شه یارمحمد سید وباسي له پنجتاره
سید له بری ورکړې الهي پروردګاره
روان شه امیرخان سرداره دربه کړمه زر
له ما سره روان شه یوسفزو ته برابر
سید رانه ملک واخیست راله وګټه دوتر
زر پاڅه روانیږه سستي مه کوه سرداره
روان شه یارمحمد سید وباسي له پنجتاره
سید له بری ورکړې الهي پروردګاره
سردار ویل وطن به درله وګټم امیره
لاسونه مې له تا سره راښکلي دي په ږیره
تاڼه به د سید کړمه له هنډه هواګیره
په مخ کښې پیشخانه سباله کوچ کوم له ښاره
سید ته بری ورکړې الهي پروردګاره
روان شه یارمحمد له امیرخان سره یارانو
توپونه تله په ګاډو زنبورک په شترانو
بې عدله بادشاهي ده غور نشته د خوارانو
دېره شه په نوښهرستر ګې یې سرې وې له خماره
سید ته بری ورکړې الهي پروردګاره
.........
آسونه زنبورک شهین خیمې شوې ورنه پاتې
خټک خلیل مهمند پیاده راغله په ماتې
مانۍ د یارمحمد د خالقداد شولې میراتې

ساته ځان نورالدینه د سیدانو له آزاره
سید ته بری ورکړې الهي پروردګاره
(د پښتونخوا د شعر هارو بهار: ۶)

سید احمد بریلوي، د خپل تحریک د غښتلي کیدلو له پاره، له څه وخته د کشمیر سیمه په نظر کې نیولې وه او د زیدي د جنګ څخه دوه کاله مخکې ئې مولوي شاه اسماعیل د هزاره سیمې ته لېږلی وو. خو شاه اسماعیل د ځینو محلي خانانو د مخالفت په وجه پرمختګ و نه سو کړای. د زیدي د جنګ څخه وروسته د سید احمد بریلوي متې یو څه غښتلي سول او یو ځل بیا ئې د کشمیر د نیولو تکل وکړ؛ د خبل خوا ته ئې پرمختګ وکړ خو د سیکهانو جنرال هری سینګه ډېر ژر خپلې قواوې هغې سیمې ته ولېږلې او د کشمیر د نیولو نقشه بریالۍ نه سوه. سید احمد ښایي په نظر کې درلودل چې په کشمیر کې یو دایمي مرکز جوړ کړي ځکه چې هلته مسلمانانو له ډېره وخته راهیسې حکومتونه کړي وه او د مسلمانانو ډېر غټ اکثریت پکښې اوسېدی.

سید احمد بریلوي په خبل کې د اوسېدنې په وخت کې د سیتانې له سیدانو سره تماسونه ټینګ کړل او دا ځای تر ډېره وخته پورې د سید احمد بریلوي د تحریک مرکز وګرځېدی. د سیدانو مشر سید اکبرشاه او د هغه کورنۍ د سید احمد بریلوي سره بیعت وکړ، تر مرګه دې

تحریک ته وفادار پاته سو او خپل مالي امکانات ئې د سید احمد بریلوي او د هغه د تحریک په اختیار کي ورکړل. سید اکبرشاه، چي په هغه سیمه کي ئې په خپله د یوه پیر او مرشد حیثیت درلود او کورنۍ ئې د څه باندي دریو پېړیو راهیسي هلته لنگر چلولی وو، سید احمد بریلوي ته د سیمي د قبایلي خانانو په باره کي بشپړ معلومات ورکړل او هغه ته ئې وویل چي د قبایلي خانانو ژمني زیاتره موقتي وي او پر هغوی باندي اعتماد په کار نه دئ،(Wahabi Movement p ۵۴).

د سید اکبر شاه دغه مشوره، هم د سید احمد بریلوي په ژوند او هم د هغه له شهادت څخه وروسته، په ډېرو ځایونو کي صحیح ثابته سوه. د امب واکمن مشر پاینده خان تناولي، په لومړي سر کي سیداحمد ته د هغه له سیمي څخه پر کشمیر باندي د حملې کولو او نیولو له پاره بلنه ورکړه خو کله چي سید احمد د امب له لاري د کشمیر د نیولو فیصله وکړه نو پاینده خان سمدستي خپله لاره بدله کړه او د سیکهانو په مقابل کي ئې خپله کمزوري پلمه کړه. دغه راز خانانو او مشرانو هم د سید احمد د عشر او هم د مذهبي اصلاحاتو سره مخالفتونه پیل کړل. که څه هم د عشر ټولولو او مذهبي اصلاحاتو په لاره کي د سید احمد بریلوي د ملگرو عملیات تر ډېره ځایه بریالي وه او خانان او مشران ئې پر خپلو وعدو باندي وفا کولو ته په زور مجبورول. په دغه وخت کي د امب څخه تر پنجتار پوري ټوله سیمه د سید احمد بریلوي تر کنټرول لاندي راغلې وه، مگر د هوتي مردان احمد خان د سید احمد بریلوي په مقابل کي بیرغ پورته کړ او د ماتي تر خوړلو وروسته په پېښور کي د سردار سلطان محمد خان سره یو ځای سو او هغه ئې د سید احمد په مقابل کي جگړې کولو ته وهڅاوه. سلطان محمد خان د خپل مشر ورور یارمحمد خان له وژل کېدلو راهیسی د سید احمد بریلوي سره دښمني درلوده او دوه ځله ئې د سید احمد پر قواوو باندي یرغلونه وکړل. په لومړۍ جگړه کي ئې د هزاره په سیمه کي ماته وخوړه او په دوهمه جگړه کي ئې، چي د مایار په علاقه کي وسوه، داسي ماته وخوړه چي د سیداحمد قواوو تر پېښور پوري تعقیب کړ او پېښور ئې د ۱۸۳۰ کال د اکتوبر په میاشت کي ورڅخه ونیوی.

سید احمد بریلوي کولای سوای چي پېښور اشغال کړي او هلته د خپلو عملیاتو مرکز جوړ کړي، خو هغه د پېښور د چارو واگي بیرته سلطان محمد خان ته وسپارلې او خپله یوه وړه قوه ئې هلته پرېښووله. د سید احمد بریلوي ډېرو زیاتو ملگرو اندېښنه وښووله، ځکه چي د سلطان محمد خان پر وفاداري ئې باور نه

درلود. مګر سید احمد بریلوي ښايي غوښتل چي د سلطان محمد خان خودخواهي د پېښور د حکومت په ورسپارلو کراره کړي او په دې توګه هم د پېښور له خوا زړه بیغمه او هم د نورو عملیاتو له پاره د خپلو جنګي مېړونو قوه وسپموي. سید احمد بریلوي د سید اکبرشاه هغه توصیه هېره کړې وه چي د پښتنو قبایلو په خانانو ډېر باور او اعتماد په کار نه دئ.

سید احمد بریلوي خپل استازی مولنا مظهر علي، له یو څه قواوو سره، په پېښور کي پرېښود او په خپله د پنجتار خواته ولاړ. سلطان محمد خان، لکه څرنګه چي انتظار ئې ایستل کیدی، د سید احمد بریلوي سره خیانت وکړ او د خپلو ملګرو خانانو او مشرانو په مرسته ئې په یوه ناڅاپي حمله کي د سید احمد ټول ملګري په یوه شپه قتل کړل. سید احمد بریلوي ته وروسته معلومه سوه چي د پنجتار فتح خان هم چنداني په پوست پاک نه دئ او د مهابن په قبایلو هم ډېر باور نه دئ په کار، نو ئې په بالاکوټ کي د عملیاتو د مرکز جوړولو فیصله وکړه. خو هغه لا خپل د مرکز او مورچلونو چاري بشپړي کړي نه وې چي رنجیت سینګهـ د خپل زوی جنرال شیر سینګهـ په مشری یوه لویه قوه ورولېږله. شیرسینګهـ د بالاکوټ قلا ونیوله او په هغه جګړه کي

سید احمد بریلوي، مولوي شاه اسماعیل او د سید زیات وکم دیارلس سوه ملګري ووژل سول. ( A General Report pp ۹۳ -۹۲).

ګل محمد شاعر د بالاکوټ جنګ او د سید احمد بریلوي وژل کېدل په خپله یوه چاربیته کي بیان کړي دي:

سید احمد شاه بادشاه دي بولي بهرام خان مولوي
په کونهار جنګ دئ کونهار شه په تا بوستان مولوي
سید احمد شاه بادشاه دي بولي څنګه حال دی نه
ده وې مردود وهم راکړی خدای اقبال دی نه
د اسلام ننګ نشته غالب خلق ارزال دی نه
د زیرو توپي خلاصېدې پرې شهینان مولوي
په کونهار جنګ دی کونهار شه په تا بوستان مولوي
د زیرو توپي خلاصېدې چي درزهاروو نه
مزکه آسمان شو ترګمی چي دروند غبار وو نه
د مولوي صاحب په لاس کي ذوالفقار وو نه
چي له مردود سره یې شه جنګ په سپین میدان مولوي
په کونهار جنګ دی کونهار شه په تا بوستان مولوي
سید احمد شاه بادشاه روان شه کوز شولګري وته
کفار پرې ډېر شو دی یې پرې نه ښو خبري وته
حورو پیالې ورلره راوړې زر تر زرې وته
خدای دي له څیلمي تاسو کاندي جنتیان مولوي
په کونهار جنګ دی کونهار شه په تا بوستان مولوي

نور بیا ...



لیکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# د سومنات فتح

(دریمه او وروستۍ برخه)

بسم الله الرحمن الرحیم - مور وویل چې پر سومنات د محمود غزنوي حمله او د هغه فتح په درې ډوله منابعو کې څېړل سوې ده، چې هغه اسلامي آثار، هندویي آثار او برتانوي آثار دي. د اسلامي منابعو او مأخذونو لنډه یادونه مو وکړه. اوس به هندو منابع وپلټو چې هغه څه وایي.

دوهم - هندو آثار:

پر سومنات د محمود غزنوي د برید په اړه څلور ډوله هندو سرچینې او دریځونه د یادولو وړ دي، یعني: الف: د جېن هندویت موقف؛ ب: د شیوا هندویت موقف؛ ج: سنسکریت منابع؛ د: هندو افراطي او نشنالیسټ موقف. اوس به هر یو مختصراً ولټوو:

الف - د جېن هندویزم دریځ:

د هغه مهال (یعني پر سومنات د محمود غزنوي د حملې په عصر کې) جېن روایاتو یا خو بالکل معمولي انګېرني لرلې، یا دا چې هغه برید ئې هیڅ ذکر کړی نه دئ. په مالوه کې د یوولسمي پېړۍ شاعر (دهنا پالا) چې د سلطان محمود همعصره دئ، پر سومنات او نورو مندرونو او ښارونو باندي د محمود حملو ته خورا لږ او عادي اشاره کړې ده، بلکي خاص اهمیت ئې نه دئ ورکړی. هغه وایي چې سلطان محمود نه سوای کولای چې د جېن پر مندرونو باندي حملې وکړي او په دې باره کې ډېره مبالغه کوي او باتې ولي. د «دهنا پالا» دلیل دا دئ چې مار «ګرودا» تر ستوني نه سي تېرولای او نه هم ستوري لمرینه روڼا تیاره کولای سي!

دی په دې ډول د جېن بتان پر شیوا باندی د سترتیا او عظمت یو ثبوت بولي. یعني جېن هندویت پر شیوایي هندویت باندي سپېڅلی او ښاغلی بولي نو ځکه ګواکي د سلطان محمود له یرغله مصئون وو. دی په خپلو شعرونو او لیکنو کې شیوایي هندویت فرسوده او فاسد بولي او ځکه نو ګواکي د سلطان محمود د قهر ښکار سول. د دې پر ځای چې د محمود غزنوي د عصر دغه مشهور شاعر او منور هندو تأسف کړی وای، برعکس شیوا پرستو هندوانو ته پېغورونه ورکوي.

وروسته په دوولسمه پېړۍ کی یو بل جېن هم کټ مټ د خپل منځي رقابت خبري کوي او وایي چې واکمن (چاولکیا) د سومنات د زایرینو پیسې اخیستې خو مندر ئې نه ترمیم کاوه، د بت (یعنی شیوا) خیال ئې نه ساتی بلکي د خپل ثروت د ډېرولو په غم کي وو. نو ځکه ګواکي د سلطان محمود د حملې ښکار سو.

جالبه خو دا ده چې دغه دواړه منابع پر هندویت باندي د مسلمانانو دا حمله نه غندي بلکي عادي تبصره پر کوي او یوازي خپلې داخلي سیالۍ بیانوي. مطلب دا چې دغو منابعو پر سومنات ډېر تمرکز کړی دئ او هغه یادوي، خو د سلطان محمود حمله نه غندي او نه هم غم او ماتم ځرګندوي.

بل هم د یو جېن سوداګر (جووادي) انګېرنه ده چې دی هم د سومنات د حملې معمولي او سطحي یادونه کوي. پس معلومېږي چې دغو ټولوجېني منابعو کوښښ کړی دئ چې جېنیزم پر شیوایزم باندي لوړ او برلاسی وښیي. یعني دا چې د جېن مندرونه به سالم پاتېدل او د شیوا مندرونه به ورانېدل، (شیوا) خپل تمثالونه همداسي پرې ښېي ول خو (مهاویر) ګواکي په خپلو پیکرو یا تمثالونو کي اوسېدی او هغوی ئې ساتل!

ب -د شیوا هندویت دریځ:

دا مبحث مو مخکي شنلی او څېړلی دئ چې هماغه د سومنات برهمنانو سلطان محمود تحریک او تلواري کړ او ملنډي یې په وهلې. د حیرانۍ خبره دا ده چې د سومنات د حملې او تباهۍ څخه وروسته هم د شیوایي هندویت آثارو، کتیبو او منابعو د نوموړي برید او ورانۍ هیڅ یادونه نه ده کړې، بلکي د خپل ثروت او دولت پر حصول ئې ټینګار کړی دئ. دغه آثار به د سنسکریت منابعو سره یو ځای مطالعه، مقابله او پرتله کړو.

ج -سنسکریت منابع:

هغه کتیبې چې په خپله د سومنات مندر څخه په لاس راغلي دي، د محمود غزنوي د حملې او ضربې هیڅ یادونه هم نه لري بلکي د داخلي تهدیدونو او رقابت خبري کوي (دا کتیبې پر سومنات د محمود غزنوي تر حملې پنځوس - شپېته کاله وروسته لیکل سوې دي چې معبد له سره بیا جوړ سوی وو).

په دوولسمه پېړۍ کی چاولکیا واکمن (کمارا پالا) یوه کتیبه جوړه کړه. هغه د سومنات له پاره یو والي وټاکی او وظیفه ئې ورکړه چې مندر او ثروت ئې د محلي راجاګانو د لوټ مار څخه وساتي.

هو، د سلطان محمود تر حملې یوه پېړۍ وروسته بیا هم د مندر د ساتلو خبري کېږي، خو دا ځل د مالوه د راجاګانو څخه! د مندر د دغسي ساتلو او ژغورلو بیان په څو کتیبو کي ذکر سوی دئ. خو د حیرانۍ خبره دا ده چې د محمود غزنوي تر حملې یوه پېړۍ وروسته بیا هم د مسلمانانو له خوا د هندوانو څخه (یا متقابلاً) هیڅ کوم نفرت او تعصب ته اشاره نه ده سوې. نو پوښتنه دا ده چې دا هر ځل ولي دغسي «ډډه» کېږي؟ آیا په اصطلاح پر «ستر شیوا!» باندي د محمود «ظلم!» هیڅ په باک نه راوړل کېدی؟ آیا د محمود له خوا د معبد هغومره «عظیم لوټ!» هیڅ مهم نه وو، خو برعکس د محلي راجاګانو کوچنی لوټ ورته مهم وو؟ آیا د کمارا پالا له خوا د سومنات بیا ودانول د شیوا د عبادت او سترتیا له پاره وو که د

ثروت حاصلولو له پاره؟ نو آیا دغه اعمال د محمود غزنوي د حملو حقانیت نه ثابتوي (چي مطلب ئې د اسلام خپرول وو)؟

دا لا څه، پورتني اسناد ښيي چي د محمود تر یرغل په را وروسته موده کي مسلمان عرب او ایراني سوداګر په ګجرات کي په امن او سوله کي اوسېدل. آن داسي هم سوي دي چي د سلطان محمود تر حملې دوه سوه کاله وروسته یو عرب مسلمان تاجر (نصرالدین) د ګجرات د محلی چارواکو او چاولکیا راجا په اجازه د سومنات مندر تر څنګ د یو لوی مسجد د جوړولو چاري پیل کړې. په دې اجازه او موافقه کي ټول سیاسي چارواکي، والي، پنډتان او برهمنان، سوداګر او مخور شامل ول. ځکه نو دا نتیجه اخیستل کېږي چي د ګجرات خلکو د محمود حمله بالکل هېره کړې او له حافظو ایستلې وه.

په هر صورت، د پورته هندو آثارو او منابعو د پلټلو څخه په اثبات رسېږي چي پر سومنات د محمود غزنوي دغه حملې، معبدورانولو او ثروت مصادره کولو نه هندوان غمولي یا پارولي دي او نه ئې هم د مسلمانانو څخه کرکه او نفرت رامنځته کړی دئ. مطلب دا چي سومنات د عادي هندوانو په ثروت مالامال وو خو هغه ټول یوازي د راجاګانو او برهمنانو ولکه وه، نه د عوامو. نو که سلطان محمود کوم ثروت مصاره کړی او را وړی هم وي هغه بې له شکه د راجاګانو، برهمنانو او بتانو ثروت وو، نه د عوامو.

د -د هندو نشنالیسټانو دریځ:

حقیقت خو دا دئ چي پر سومنات باندي د سلطان محمود حمله څه باندي زر کاله مخکي سوې ده خو په تېرو نهو سوو کالو کي هیڅ کوم هندو اثر یا منبع هیڅ ډول غم یا ویر نه دئ ښودلی بلکي هر یوه دا پېښه عادي ځېرلې ده. خو د نن ورځي متعصب او نشنالسټ هندوان (خصوصاً بهارتیه جنتا پارټۍ یعني بي جې پي، شیو سینا ګوند، بجرنګ دل حزب، راشټریه سوَه یم سي وک او نور) ادعا کوي چي ګواکي د سلطان محمود دغه حملې د یو زر کالو راهیسي د هندوانو له پاره د یوې ملي غمیزی حیثیت لرلی دئ! هندو سخت دریځه عناصر او افراطیان ادعا کوي چي ګواکي سلطان محمود یوازي د هندوانو او مندرونو دښمن وو. له همدې امله د ۱۹۹۹ د سپټمبر پر ۲۵ مه د بي جې پي ګوند مشر (ایل . کې . ادواني) پر سومنات د محمود غزنوي د حملې په غم کي تر هغه مندر پوري «رت یاترا» یعني په بګۍ کي یون وکړ او پر ټوله لار ئې هندوان د مسلمانانو پر خلاف راپارول او نفرت ته لمسول، چي زه یعني دغه لیکوال یې عیني شاهد یم.

که یو څه شا ته ولاړ سو، نو د شلمي پېړۍ په لومړیو کي د اول ځل له پاره د مسلمانانو څخه د هندوانو کرکي ته لمن ووهل سوه چي په لوی لاس او تحمیلي توګه ئې د سومنات په اصطلاح «ویر» د هندوانو په دماغونو کي تذریق کاوه. د دې لمسون مؤسس «کې. ام. منشي» وو چي تر خپلواکۍ وروسته وزیر سو. بل متعصب هندو «بنکیم چندرا چترجي» وو چي د «ژوندی دي وي سومنات» په نوم ئې یو ناول ولیکی او هندوان ئې د مسلمانانو څخه متنفره کول. بل خورا متعصب هندو «اچاریه چتورسین» دئ چي په ۱۹۶۱ کي مړ سو . هغه یو ناول ولیکی چي عنوان ئې وو: (شوبها سومنات کي؛ یعني د سومنات شوبها). چتورسین په دې لمسوونکي اثر کي یوه بې اساسه، تخیلي، ناموثقه او غیر واقعي افسانه جوړه کړې ده. دغه ناول د یوې ځواني نجلۍ (شوبها) تخیلي داستان بیانوي

چي ګواکي پر سومنات باندي د سلطان محمود غزنوي د حملې پر مهال پېښې سوې دئ. دلته د شوبها هيواد پالنه او غيرت او برعکس د محمود غزنوي بدمعاشي او فحاشي بيانوي چي کوټ بې بنسټه او تخيلي افسانه ده چي هيڅ تاريخ ئې ذکر نه لري. جالبه لا دا چي د دې ناول څخه وروسته يوه اوږده ډرامه جوړه سوه چي «زي - ټلويزيوني چينل» ډېره موده د هغه پرله پسې برخي خپرې کړې. اول څو مياشتي هره ورځ يوه يوه برخه خپرېده، خو ليدونکو چنداني نه خوښوله. نو ځکه وروسته په هفته کي يوه برخه خپرېده (ټولي ۱۲۹ برخي وې چي هره برخه ۲۴ دقيقې وه. دا سريال د ۲۰۱۱ د جون پر شلمه پيل سو او د ۲۰۱۲ د فبرورۍ پر ۲۶مه ئې وروستۍ برخه نشر سوه). خو د دې هر څه سره سره بيا هم هندوان په دې تخيلي افسانه سره نه تحريک کېدل او سريال حتی خپل مصارف هم پوره نه کړل او ناکام سو.

په هر صورت، د حيرانۍ خبره دا ده چي سلطان محمود خو په متيوره، منصوره، قنوج، تهانيسر، کشمير، پنجاب... کي هم په لسګونو آن سلګونو مهم او غټ مندرونه او بتان وران کړل، د هغوی وير او ماتم ولي هيڅ نه دئ سوی؟ د حيرانۍ بله خبره لا دا چي په تېرو څه باندی يو زر کالو کي هيڅ کوم هندو اثر، کتيبې يا تاريخ د سومنات د «غم او ماتم!» هيڅ ذکر هم نه دئ کړی. دا ولي؟ ځواب ئې په تيرو لسو پېړيو کي ورک او لادرک دئ. خو دا ولي يوازي په تېرو سلو کالو کي دغه ورک، لادرک او هېر سوی غم نابېره بيا تازه سو او دا چا وکړ؟ ځواب ئې لاندي لولو.

دريم - برتانوي آثار:

د محمود غزنوي له خوا د سومنات د حملې او قبضې په تړاو دوو کټګوريو برتانوي منابعو ډېر تمرکز کړی دئ. لومړی د نونسمي پېړۍ آثار او مأخذونه دي او دوهم په نونسمه پېړۍ کي د انګلستان په اولسي جرګه کي مناقشه او مباحثه ده.

الف - برتانوي آثار او منابع: پر سومنات د محمود غزنوي بريد او د هغه پايلي په نهو - لسو مشهورو برتانوي آثارو کي ذکر سوي دي، خو څلور ئې ډېر اوڅار او معتبر دي: لومړی: د ايليټ اثر (د هند تاريخ) دوهم جلد؛ دوهم: د کليفورډ اډمونډ بوسورت اثر (غزنويان: د هغوی امپراتوري په افغانستان او ختيځ ايران کي)؛ دريم: د مونسټيوارټ الفنسټن اثر (د هند تاريخ)؛ څلورم: د سر ولزلي اثر (د هند د کېمبرج تاريخ). خو د ياودنې وړ مهمه خبره دا ده چي دغو څلورو معتبرو آثارو هر يوه بيرته د اسلامي آثارو خصوصاً (تاريخ فرشته) څخه ډېره استفاده کړې ده چي جوناتن سکاټ په ۱۷۹۴ کي په انګريزي ژباړلی او چاپ کړی دئ. ځکه نو دغه آثار د اسلامي آثارو څخه کوم خاص نوی بيان نه لري.

ب - د انګلستان اولسي جرګه: اول به يو څه شا ته ولاړ سو او د تاريخ څو پاڼې به واړوو. بيا به د برتانيې د اولسي جرګې اړونده مباحثو او مناقشو ته راسو.

د انګرېز- افغان په لومړۍ جګړه (۱۸۴۱ - ۴۲) کي چي کله انګرېزانو عظيم تلفات وزغمل، څه نا څه سل کسان ئې د افغانانو سره يرغمل او بنديان سول (چي وروسته په باميان کي ساتل کېدل)، سياسي استازی (مکناټن) ئې ووژل سو او مړی ئې د کابل په چار چته بازار کي وځړول سو، هر ځای په خپلو پوځي اډو کي محصور او تحديد وو، نو بالاخره دې ته حاضر

سول چي له افغانستانه تېر سي او امير دوست محمد خان بيرته په هند کي له قيده آزاد کړي. خو شرط ئې دا وو چي افغانان به اجازه ورکوي چي انگرېزي پوځونه ټول په کابل کي راغونډ سي او د افغانستان څخه بې له مزاحمته ووزي.

ملي مبارزينو (د وزير اکبر خان په مشرۍ) د هغوی غوښتنه ومنله، خو انگرېزانو د چل، فريب او منافقت څخه کار واخيست. د انگرېزانو پياوړی شپږ زره کسيز لوی پوځ د جنرال ناټ په قومانده د ۱۸۴۲ د اگسټ پر ۲۸ د کندهار څخه کابل ته حرکت وکړ تر څو له هغه ځايه د خپلو نورو پوځيانو سره د جلال آباد له لاری برتانوي هند ته ولاړ سي.

دا مهال په هند کي مرستيال واکمن (لارډ ايلن بورو) وو. هغه په کندهار کي جنرال ناټ ته هدايت وکړ چي په هر ډول وي، بايد په غزني کي د سلطان محمود د زيارت لويه دروازه ورسره راوړي چي هغه گواکي محمود غزنوي د سومنات له مندره هلته وړې ده. ايلن بورو د ۱۸۴۲ د جولای پر څلرمه جنرال ناټ ته داسي وليکل: «د محمود له مزار څخه هغه گورز درسره راوړه چي پر قبر ئې ځوړند دئ، او هم د زيارت غټه دروازه درسره راوړه چي هغه د سومنات د مندر ده. دا به ستا د سوبمن يون له وياړه ډک يادگار وي». د تأسف ځای خو لا دا دئ چي په افغانستان کي استوگن جگړن رالنسن چي د ختيځو هيوادو د لرغون پېژندني د چارو مسئول وو، د دې کتيبې تر دقيقي او محتاطانه معاينې وروسته دې نتيجې ته ورسېد چي دا اصلي دروازه نه بلکي د هغې غوندي ده. خو د دې خبرداري او پوهاوي سره سره بيا هم دا دروازه هند ته په غلا يووړه سوه.

د جنرال ناټ مجهز او تکړه پوځ د کندهار څخه کابل ته پر لاري پر غزني سخته حمله وکړه، ملي مبارزين ئې پر شا وتمبول، بالاحصار ئې ونيوی او بيا ئې د سلطان محمود غزنوي پر مزار بريد وکړ او د هغه لويه دروازه ئې له بېخه وکښله، پر اوښانو ئې بار کړه او مخ پر کابل وخوځېدل. هلته نورو استوگن برتانوي پوځيانو د اکتوبر پر لسمه نور انتقامي عمليات هم وکړل. هغوی د کابل ډېر کورونه ونړول، قتل عام او لوټ تالان ئې وکړ او د چارچته مشهور بازار ئې ځکه وران او لوټي لوټي کړ چي افغانانو مکناټن هلته ځړولی وو.

په هر صورت، انگرېزانود اکتوبر پر دوولسمه هند ته حرکت وکړ. هغوی د سلطان محمود غزنوي د مزار غټه دروازه هندوستان ته ورسره يووړه. لارډ ايلن بورو په جگه غاړه او باټو سره يوه اعلاميه خپره کړه او هندوانو ته ئې داسي وويل: «زموږ سوبمنو پوځيانو د سومنات دروازه، چي د افغانستان په لاس د هندوستان د ذلت يوه نښه ده، ورسره راوړه، او دا دئ موږ هغه تاسو ته درسپارو. نو زموږ او ستاسو يووالی بايد همېشني وي...». ايلن بورو وويل چي برتانيې د اتو سوو کالو حساب پر ځای کړ او په دې ډول ئې هندوانو ته وښودل چي موږ گواکي ستاسي خواخوږي يو.

ايلن بورو دا دروازه سومنات ته ولېږله او هلته ئې په يوه ځانگړې گاډۍ کي کېښېښووله او په پرتمينو مراسمو ئې د ښار په لويو کوڅو کي وگرځوله. خو دې کار هلته د عامو خلکو غميزه بيا را تازه کړه. هغوی شکمن او مترددد سول او په کورونو کي پټ سول او د دې دروازې د ليدلو او منلو څخه ئې انکار وکړ. مهمه لا دا، کله چي هندو برهمنانو دروازه له نږدې وليدله، نو هغه ئې رد کړه او وئې ويل چي دا د چندڼ (صندل)

لرګی نه بلکي يو عادي لرګی او مصری صنعت دئ او د هند سره هيڅ ډول تړاو نه لري.

په دې غبرګون سره د پنجاب چاونۍ د جت ډلګۍ پوځيان په عام ډول او برتانوي چارواکي په تېره بيا شخصاً لارډ ايلن بورو په خاص ډول شرمنده او سرځوړي سول. ځکه لومړۍ ډله به ويارېدل چي د سومنات دروازه دوی په خپلو قوي لاسونو د محمود غزنوي له مزار څخه راوړله، خو دوهمه ډله بيا ځکه خړ او پړ سول چي ستره سياسي غلطي او ناکامي ئې وکړه.

مرستيال واکمن (لارډ ايلن بورو) او د ده سياسي - پوځي شورا ژر خپله دا عظيمه غلطي او ناکامي پټه کړه او جار ئې وواهه چي ښايي د سومنات اصلي دروازه به د سلطان علا الدين غوري له خوا د غزني د سوځولو پر مهال سوځېدلې وي (نو ځکه ګواکي موږ ګومان کاوه چي همدا اصلي دروازه ده)!

خو افسوس دا دئ چي برتانوي چارواکو په دې خبره ځانونه هيڅ نه پوهول چي سلطان محمود څه ضرورت درلود چي د سومنات دومره غټه، درنه او غير ضروري دروازه ورسره يوسي؟! هغه چي د ځينو منابعو له مخي د سومنات مندر څخه په منونو سره زر، جواهرات، الماس... تر لاسه کړل، د دې دروازې مادي ارزښت به څومره وو؟ آيا د هغه وخت مسلمانو پاچهانو چي په ودانيو ئې خورا ډېري پيسې لګولې، نو دروازه ئې د هندو مندر څخه ورته راوړه؟

مهمه پوښتنه دا ده چي انګريزانو ولي دغه دروازه له افغانستانه هند ته يووړه؟ څو ښکاره قراين او علايم ئې داسي ځوابوي:

لومړی: انګرېزانو غوښته چي هندو راجاګان خوشحاله او راضي کړي چي ګواکي د هغوی د اته سوه کلن ذلت بدل ئې واخيست.

دوهم: تر څو په افغانستان کي ئې خپله شرمېدلې ماته پټه کړې وای، بلکي هغه ئې يوه سوبه معرفي کړې وای چي ګويا په زوره د دې دروازې راوړل ئې يوه ښېلګه ده.

درېيم: تر څو دا ئې ښودلې او ثابته کړې وای چي افغانستان درې کاله د برتانيې تر واک او کنټرول لاندي وو.

څلورم: تر څو تر برتانويانو مخکي افغانستان ته ئې د هند اطاعت يا زيردستي برعکس ښودلې وای.

پنځم: تر څو هندو راجاګان ئې بالاعم او سيک مشران ئې بالاخص پوهولي او ډارولي وای چي برتانوی راج بايد ومني.

شپږم: تر څو دننه په انګلستان کي ئې ملي خواخوږي ګټلې وای.

خو پر ځای د دې چي د لارډ ايلن بورو په دې نمايش باندی په هندوستان خصوصاً پنجاب کي د چا پر زړه باندي د انګرېزانو رعب پرېوتی وای، برعکس هغوی ټولو په دې ننداره او دغه تظاهري جاه و جلال ښودلو باندي ملنډې وهلې، ځکه، د کوم هدف له پاره چي افغانانو د انګريزانو پر خلاف پاڅون او مقاومت کړی وو، پکښي کامياب سول. يعني هغوی خپله او د هيواد آزادي حاصله کړه او ټول ملک ئې د پرديو څخه پاک کړ او هغوی ئې وشړل، چي دغه افغاني سوبې په ټول ختيځ کي د برتانويانو په تاريخ کي هيڅ ساری نه درلود.

دا لا څه، د هندوستان ټولو خلکو ته معلومه وه چي کومه دروازه جنرال ناټ د ځان سره د غزني څخه راوړې وه، د سومنات دروازه نه وه بلکي فرضي او تخيلي وه. بله دا چي که محمود غزنوي د سومنات د مندر دروازه وړې

وي، نو انګرېزانو خو د هندوانو څخه د هغوی ټول ملک او ټول مندرونه لاندې کړي ول. نو د یوې لرګیني دروازې په بیرته راوړلو سره خو د هندوانو د غلامۍ او بې واکۍ دغه تور داغ نه سو لیری کېدای!

په هر صورت، کله چې په ګجرات کې د محمود غزنوي د مزار دغه دروازه مسترد سوه، نو انګرېز حکومت بیرته په پټه ډیلي ته یووړه. د برتانوي پوځ جت سیکانو غوښتنه کوله چې دا دروازه د دوی ځوانانو له غزني څخه راوړې ده، نو ځکه باید اوس د دوی په معبد (ګوردواره) کې کښېښوول سي. همداعلت دئ چې هغه د څه مودې له پاره د امرتسر په طلایي معبد کې ایښوول سوې وه چې وروسته له هغه ځایه اګرې ته ولېږل سوه او تر ننه د اګرې د مغلي لال قلعه په «دېوان خاص» کې خوندي ده . خو دا څرګنده نه ده چې ولی هلته ولېږل سوه؟! او دا هم څرګنده نه ده چې ولی بیرته افغانستان ته ور نه کړه سوه، یا ولی په دې ۱۷۲ کالو کې هیڅ افغان واکمن یا افغان حکومت دا غوښتنه نه ده کړې؟ او ولې هغه په اګره کې چټې د «وَینه وو» له خوا خوړل کېږي؟! (ما [صمد] نوموړې دروازه په ۱۹۹۳ کې له نږدې لیدلې ده او د هغې د لوحې په لوستلو مې ډېر افسوس او غم وکړ او ملګرو ته مې وویل چې افغانستان په رښتیا هم حقیقي غمخور واکمن نه لري. خو هغوی عجیبه ځواب راکړ: ښه دئ چې دا دروازه همدلته ده، یو وخت خو به افغانستان ته ورکړه سي. که په افغانستان کې وای، اوس به وختي لا خرڅه سوې وای او د کوم اروپایي موزیم مالکیت به وای)!

د دې لویې دروازې مخته یوه لوحه ایښوول سوې ده چې په انګرېزي او هندي ژبو داسي پر لیکلي دي:

«د غزني دروازه (۱۰۳۰ میلادي)

دغه دروازه اصلاً په غزني کې د محمود غزنوي په مزار پوري اړه لري. هغه په ۱۰۳۰ میلادي کې مړ سوی دئ. دا په ۱۸۴۲ کې برتانویانو دلته راوړې ده. ګورنر جنرل لارډ ایلن بورو په خپله تاریخي اعلامیه کی ادعا کړې وه چې دا د سومنات له چندنه جوړه سوې دروازه ده چې محمود په ۱۰۲۵ کې غزني ته ورسره وړې وه، او برتانویانو ګواکې د اته سوه کالو بې عزتۍ انتقام واخیست. دغه دروا‌غجنه ادعا صرف په دې خاطر وسوه چې د هندي اولس روغ نیتی یې حاصل کړی وای. دغه دروازه د چندڼ څخه نه بلکې د غزني د ځایي لرګي څخه جوړه سوې ده. د هغې نقش و نګار د لرغوني ګجراتي لرګیني حرفې (لرګین صنعت) سره هیڅ مشابهت نه لري. د هغې پر یوه برخه عربي خط هم توږل سوی دئ چې محمود په خپل لقب سره یادوي. سر جان مارشل دلته یوه تخته ورته ایښې وه چې دغه ټوله قصه پر لیکلې او دغه دروازه پکښې تشریح سوې وه.

دا ۱۶/۵ فټه جګه او ۱۳/۵ فټه پراخه ده او څه نا څه نیم ټن وزن لري. پر همدې دروازه باندي هندسي، شپږ ضلعي او اته ضلعي نقاشۍ سوي دي چې پر چوکاټ باندي ټوله بې له میخ ټک وهلو څخه یو د بل په واسطه مبنتي دي.

د دې مفکورې څخه صرف نظر وسو چې غوښته ئې دا دروازه سومنات ته ورکړي خو بیرته مسترد سوه. نو د هماغه وخت راهیسي په همدې خونه کې ایښوول سوې ده. دا په هیڅ توګه په دې کلا یا په مغولو پوري اړه نه لري، او ځکه همدلته ایښوول سوې ده چې یا به په ۱۸۴۲ کې د برتانویانو د یوې جنګي سوبې په

توګه وي او يا به هم د ختيځ هند د کمپنۍ د تاريخي درواغو يوه غمجنه يادونه وي".

هو، موږ وليده چې په خپله د هند حکومت هم، د هندوانو په استاځيتوب زموږ پورتنۍ انګېرنې تاييدوي او دغه دروازه بالکل يو افغاني مالکيت بولي. د برتانويانو دا کړنه شديداً محکوموي او اړونده ادعا ئې محض درواغ او منافقت بولي.

په هر صورت، اوس به د پورتني لنډ وضاحت ځخه وروسته د انګلستان د اولسي جرګې مباحثو او مناقشو ته مراجعه وکړو.

په ۱۸۴۳ کې د انګلستان د عوامو په مجلس کې د سلطان محمود له خوا د سومنات مندر د لويې دروازې د مسألې پر سر توده مباحثه او مناقشه وسوه. ځينو د هغې راوړل ستر شرم وباله او ځينو بيا ستر وياړ وباله. لارډ ايلن بورو خپله مشهوره «د لويې دروازې اعلاميه» خپره کړه چې په هغې کې ده په افغانستان کې برتانوي پوځ ته امر کړی وو چې د غزني له لارې راستانه سي او د ځانو سره د سلطان محمود د ګنبدې ځخه د صندل (چندڼ) دروازه هندوستان ته راوړي. ادعا کېده چې د دې کار مقصد دا دئ چې هغه ځه بيرته هند ته وسپارل سي چې ترې لوټ سوي وه.

دغه اعلاميې په اولسي جرګه کې د حکومت او مخالفينو تر منځ د ټکر سپرغی وواهه. داسې پوښتنه کېده چې آيا ايلن بورو په دې کار سره هندوان آراموي او هڅوي که مذهبي تعصب راپاروي؟ دا کار د هغو کسانو د ملاتړ ځخه برخمن وو چې ويل ئې دغه دروازه يو «ملی برى» دئ نه مذهبي سپکاوی.

جالبه لا دا چې په دې ارتباط د شاه شجاع ځخه د پنجاب د واکمن رنجيت سينګهـ له خوا په ۱۸۳۳ کې د دې دروازې د غوښتنې خط اقتباس سوی وو (چې شاه شجاع په شدت سره د هغه دا غوښتنه رد کړې وه). خو کله چې دا خط په غور مطالعه او وکتل سو، نو معلومه سوه چې رنجيت سينګهـ د سومنات مندر د (جګه نات) په مندر سره غلط کړی وو. دا استدلال هم وسو چې هيڅ کوم تاريخ يا تاريخپوه د محمود له خوا د دې حملې په تړاو کومه دروازه نه ده ذکر کړې. ځکه نو د دروازې دغه افسانه د فولکلوري عنعناتو يوه اختراع بلل کېدای سي.

په دې ډول د برتانيې د اولسي جرګې استاځو د هندي تاريخ دغه مبهمي، نامعلومي او ناليدلي اخيستني د خپلو سياسي او ګوندي ډغرو د مهماتو او تجهيزاتو په حيث کارولې. د ايلن بورو ملاتړو په جرګه کې استدلال کاوه چې دی په دې ډول د هندوانو د دماغونو ځخه د هغوی د حقارت او سپکاوي احساس ختموي يعني: «دا کار به هندوستان د هغه درد او غم ځخه آرام کړي چې د فاتح محمود تر نيوني لاندې راغلی وو او تقريباً يو زر کاله ئې هندوان دردولي دي... د دې دروازې خاطره د هندوانو سره د هغسې يوې دردناکه او بربادونکې خاطرې په حيث پاته ده چې هندويزم ته تر ټولو ورانوونکې ده». خو پر ايلن بورو باندې انتقاديان له دې ببرېدل چې د دې دروازې راځغلول په هند کې يوازې د هندوانو له مذهبه ملاتړ او د هغه لمسون دئ؛ او تشويش ئې دا وو چې د دې کار سياسي پايله به د مسلمانانو تونډ خښم راوپاروي.

پوښتنه دا ده چې آيا دغه مناقشې دننه په هند کې هندوانو ته د مسلمانانو پر ضد روحيه او لوری ورنه کړ، هغه هم داسې چې په پخوانيو منابعو، مأخذونو او آثارو کې د دې دروازې هيڅ

ذکر نسته؟ څکه نو د پخوانۍ زمانې د یوې داسي غمیزي را ژوندۍ کول چي اصلاً هیڅ وجود نه لري، صرف یوه معما او اختراع ده.

بس د لندن په اولسي جرگه کي د همدې چتي مشاجرې او مناقشې راهیسي د سومنات مندر قضیه، پر هغه حمله او هنگامه په لوی لاس تازه او راپیل سوه چي د هغه څخه ئې د هندو - مسلم د بیلتون، تکر او نفرت مرکزي نقطه جوړه کړه چي بیا نو دا پړی «کې . ایم . منشي» ته په لاس ورغی چي مخکی مو وڅیړی. دغو مصنوعي او تخیلي تحریکاتو وروسته په گجرات او نورو سیمو کي په زرگونو مسلمانان قتل عام کړل. پس آیا سلطان محمود به ملامت وي که برتانویان او متعصب هندوان؟ خو دا به هم ډېره ناځواني، ناپوهي او ناسیالي وي چي د یوې زریزی پر ابتدا او انتها باندي عین حُکم وکړو، یعني د یوولسمي پېړۍ پېښي او کړني زر کاله وروسته د یوویشتمي پېړۍ په ترازو کي وتلو!

## پای لیکنه:

د سومنات او سلطان محمود غزنوي نومونه داسي سره تړلي او جاروتلي دي لکه د پاني پت سره د احمد شاه بابا نوم، یا د میوند سره د ایوب خان نوم. د هند په گجرات کي د سومنات مندر په ټوله سیمه کي د هندو مذهب د تبلیغاتو ستر مرکز وگرځېد چي له امله ئې سلطان محمود غزنوي ۱۵۰۰ کیلومتره لیري مقابلې او مقاتلې ته ولمساوه. د دې مندر بت د انسان څېره نه لرل بلکی د شیوا تناسلی آله (لنگا) وه چي هندوانو ئې عبادت کاوه. هندوان په دې عقیده وه چي دغه بت روزي ورکوونکی، ژوند بخښونکی، تباه کوونکی او د هر شي اورېدونکی او لیدونکی دئ. نو څکه ئې ډېر نازاوه او خپل قیمتي شیان (لکه سره او سپین زر، جواهرات، الماس...) به ئې د نذرانې په توگه ورته راوړل.

کله چي محمود غزنوي د هندوستان نور بت تونونه (مندرونه) ورانول نو د سومنات برهمنانو به د پېغور په ډول ویل چي د سومنات بت د هند پر نورو بتانو په قهر دئ، نو څکه هغوی د سلطان محمود له خوا محکوم او معدوم کېږي، او ویل ئې چي محمود هیڅکله سومنات نه سي فتح کولای، دا څکه چي گواکي د سپوږمۍ رب دومره پیاوړی دئ چي دغه بت د هر ډول یلغار څخه ساتي، نو محمود به څه وکړای سي؟! په دې سره محمود نور هم وخبنمېد او ولمسېد په تېره بیا دا چي محمود پر کفارو (خصوصاً بت پرستانو) بریدونه خپل اسلامي مسئولیت باله.

نو هغه وو چي محمود غزنوي دېرش زره کسیز پوځ برابر کړ چي د ترکو، پښتنو، تاجکو او هندوانو څخه جوړ سوی وو، او بیا ئې پر سومنات باندي سخت یرغل وکړ او هغه ئې فتح کړ. د مندر په زرگونو وسله وال محافظین او مدافعین ئې ووژل او د بتخانې ټول ثروت ئې مصادره کړ. خو نه ئې عوام ووژل، نه ئې د عوامو ثروت قبضه کړ او نه ئې هغوی په زوره مسلمانان کړل. الفنسټن داسي لیکي: «موږ حتی یو دغسي مثال نه سو لیدلای چي هغه [سلطان محمود] دي جبراً کوم هندو مسلمان کړی وي، حتی یو ثبوت هم نه سي پیدا کېدای چي د جنگ یا کلا نیولو د وخت څخه پرته دي هغه یو هندو لا هم وژلی وی "د هند تاریخ: ۳۳۶ مخ".

دغه فاتح لښکر د ډېري سترړیا، لوږي، تندي، ناروغیو، جنگونو او ټپونو له امله څه باندی یو کال وروسته (په ۱۰۲۶ کي) غزني ته راورسېد.

دغه مندر د ۷۲۵ میلادي کال څخه تر ۱۷۰۶ پورې شپږ ځله مسلمانانو وران کړی دئ خو وروسته به بیرته هندوانو جوړ کړ. هر ځل به مسلمانانو د هغه پر ځای یا د هغه تر څنګ مسجد جوړ کړ، څو چې د هند او پاکستان تر وېش (خپلواکۍ) وروسته د آخري ځل له پاره د مغولي واکمن اورنګزیب مسجد ونړول سو او پر ځای ئې د سومنات مندر بیرته په پاخه او عصري توګه ودان سو چې نن ئې سیلانیان لیدو ته ورځي.

په هر صورت، د محمود غزنوي له خوا پر سومنات د حملې او د هغې د پایلو د څېړلو په هکله درې طبقې مأخذونه ډېر اهمیت لرې چې هغه اسلامي آثار، هندویي آثار او برتانوي آثار دي. اسلامي آثارو هر څه په ډېر وسعت او وضاحت سره ویلي او شنلي دي. هندویي آثارو (د محمود غزنوي د عصر او مابعده زمانې منابعو) یا خو هیڅ نه دي ویلي یا دا چې خورا لږ، عادي او سطحي اشاره ئې ورته کړې ده چې دا په خپله د ډېرې حیرانتیا وړ ده. برتانوي آثارو هم د اسلامي مأخذونو څخه اقتباسات کړي دي نو ځکه نوی شی نه لري. خو تر ټولو ناوړه کار د برتانوي پوځیانو له خوا د ۱۸۴۲ په اکتوبر کي د سلطان محمود د مزار څخه د هغه د لويې دروازې وړل هندوستان ته دي چې ویل ئې دا ګواکي د سومنات د مندر دروازه ده چې محمود غزنوي راوړې وه. که څه هم هندو برهمنانو هغه مسترد کړه او معلومه ئې کړه چې هغه یو عادي لرګی دئ نه ګجراتي چندڼ. مګر کله چې د انګلستان په اولسي جرګه کي په دې هکله ډېره مباحثه او مناقشه وسوه، نو دې کار وروسته هندو متعصب او نشنالیستې عناصر له خوبه راویښ او تحریک کړل، او د مسلمانانو سره ئې د هندوانو د کرکي تخم وکری چې وروسته په ګجرات او نورو سیمو کي د زرګونو مسلمانانو د سرونو په بیه تمام سو. ځکه نو برتانویانو د هندوانو ذهنیت مغموم او مسموم کړ چې په دې سره ئې د هندوانو او مسلمانانو د اړیکو زیانمنول دایمي کړل. پس ویلای سو چې ایلن بورو په خاص ډول تر محمود غزنوي، او برتانوي اولسي جرګه په عام ډول تر مسلمانانو ډېر مسئول او مقصر دي. کټ مټ په تېرو ۱۷۲ کالو کي ټول افغان واکمنان هم ډېر مسئول او مقصر دي چي د محمود غزنوي د زیارت دروازه ئې نه پخوا له انګریزانو او نه اوس له هنده غوښتې ده. الله دي سلطان محمود غزنوي او د ۱۴ پېړیو ټول غازیان، شهیدان او متباقي مسلمانان وبخښي، والسلام.

**اړونده مأخذونه:**


۱. سومنات او محمود؛ پرفیسوره رومیلا تاپر، هندو مجله، شپاړسم کال، اتمه ګڼه، ۱۹۹۹، هند.

۲. آخري معرکه؛ نسیم حجازي، جهانګیر خپرندویه مؤسسه، لاهور، ۲۰۰۵.

۳. د هند تاریخ؛ مونستیوراټ الفنستن، لندن، ۱۹۰۵.

۴. د پښتنو تاریخ؛ دوهم ټوک، درېیم چاپ، قاضی عطاالله خان، یونیورسټي بُک ایجنسي، پېښور، ۲۰۱۲.

۵. د افغانستان تاریخ؛ ژباړن: اورنګزېب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، کابل، ۲۰۱۰.

۶. د هند تاریخ، د پخوانی زمانې څخه د لارډ ډل هاؤس تر اداري پورې، درېیم ټوک؛ جان کلارک مرش مېن، لندن، ۱۸۶۷.

۷. غزنه در دو قرن اخیر؛ عزیزالدین وکیلی، کابل، ۱۳۵۶ ش.

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاری

ذبیح الله جهیش

## غزل

زړه مي ستا په عشق کباب دئ مات ئې نه کړې
په سلګو لکه رباب دئ مات ئې نه کړې

د مړو سترګو قاتل غشي دي سمبال کړه
شبنم پروت پر سور ګلاب دئ مات ئې نه کړې

امامت به پکښي ستا د شونډو کېږي
د خوږې مينې محراب دئ مات ئې نه کړې
د مغرور نظر قدم دي لږ په ورو ږده
نازک زړه مي اوس حباب دئ مات ئې نه کړې
د ګلاب له ښکلو پاڼو مي جو کړی
ستا د سرو شونډو کتاب دئ مات ئې نه کړې
لا کړه پورته شرنګوه ئې مړوند سپين کي
دا د ډېرو انتخاب دئ مات ئې نه کړې

زما او ستا د پاکي مينې په تړون کي
له بديو اجتناب دئ مات ئې نه کړې

ستا نظر به پرې ماتېږي ښکلې ياره
زخمي زړه مي سم خوناب دئ مات يې نه کړې

محبوب شاه مشتاق

## غزل

داسي د هر چا سره هم نه دئ ښخ
اې په هر فکر کي ملهم نه دئ ښخ

ګراني ته ځکه سره او سپينه ښکارې
ستا په زړګي کي خو هيڅ غم نه دئ ښخ

د شونډو پل دي پر کوم ځای کښېږدمه
وايه په کوم ځای کي دي بم نه دئ ښخ

و دې زيارت ته چرسيان نه رادرومي
په دې زيارت کي خو چلم نه دئ ښخ

هره وينا بې له قسمه کوم
زما په خوله کي خو قسم نه دئ ښخ

مشتاقه چيغي له دې ځايه راځي
په دې زيارت کي يو ځوک سم نه دئ ښخ

عطامحمدبېباني

# غزل

کډوان په پېشلمي کي ختکيان په پېشلمي کي
تر خېټي مو قربان کړله چرګان په پېشلمي کي

بيده به ډاکتران په خواږه خوب وه تر سهار
خو موږ به هره شپه وو رنځوران په پېشلمي کي

د الهام له برکته به غيبي په نس ماړه وه
په لوږه خبر نه وه شاعران په پېشلمي کي

د اسمان د ستورو سترګي به له لمره شرمېدلې
خو موږ به لا ځټله پتنوسان په پېشلمي کي

شکر دئ چي نه يو همېشه پر پېشلمي ويښ
کنې لا به پخوا وای لېونيان په پېشلمي کي

چي کله به چاپه وه پېشلمی به ځني هېر وو
د ځان په وير اخته وه صحرايان په پېشلمي کي

د ورځي چي به کوم چغال کړې داړي راته پيخي
په خوب به مي ليدله پېرانان په پېشلمي کي

هغه شپه د شب قدر وه پر ما باندي ملګرو
چي نه به مېلمانه وه نه اخښيان په پېشلمي کي

تور وراسته انار ارغنداويانو وه راوړي
په موږ باندي يې وخوړه چينجان په پېشلمي کي

بېباني د پېشلمي پر وخت بيده نه سې بېغمه
په ښکار پسي مدام وزي ښکاريان په پېشلمي کي

حيات الله ځرک

# غزل

بـــشر غمخـــورو تـــه عـــزت ورکـــوم
د اســـمان ســـتورو تـــه عـــزت ورکـــوم
خـــود بـــه زمـــا کـــور پـــه جنـــت کـــي وي چـــي
د بـُــل سرتـــورو تـــه عـــزت ورکـــوم
څـــه ســـرېتوب څـــه زړه ورتـــوب کومـــه
تـــر ځـــان کمـــزورو تـــه عـــزت ورکـــوم
ســـتا زړه کي ځـــای را ځکـــه تـــا بـــه ويـــل
زه و بـــې کـــورو تـــه عـــزت ورکـــوم
يـــار، ورور، تربـــور او بـــل امـــام د مـــسجد
ډېـــر دا څلـــورو تـــه عـــزت ورکـــوم

بشيراحمد بشارت

# غزل

حزان په بيه ازار اخلي بې ازاره نه ځي
اغزی هم امن د سر غواړي له بهاره نه ځي

لکه چي دوی په هيڅ رقم د تللو نيت نه لري
ځئ چي ورځو دغه تياري بې له سهاره نه ځي
ستا د ښايست پر شنه دي فلسطين ګلونه
دا اسرايل خويونه هيڅ وخت له دې خاره نه ځي
سترګې يې سرې زلفي اوږدې او زما سوی وجود
ګولۍ په وينو او جګره له کندهاره نه ځي

د زړه حجره کي بشارت ساتي مالګين يادونه
زخم چي ځوان وي نو دردونه له پرهاره نه ځي

عزت الله شمشاد

## غزل

پیدا کېږي څو څراغ په محبت کې
څو چې وخوري سرې داغ په محبت کې
دا خبره دي څوک هیڅکله هم نه کړي
چې خراب مي سو دماغ په محبت کې
د ژوندون تر هغه لوړ پړاوه رسي
که څوک جوړ کاندي یو باغ په محبت کې
له دښمن نه د ویشتلو ګیله نه کړم
زه په خپله ناست یم ناغ په محبت کې
د ملګرو په دوعا مي دي مات کړي
له اشنا سره چناغ په محبت کې
د خوښیو پله هغه وخت درنه سي
چې شمشاده زړه سي چاغ په محبت کې

حاجي غلام نبي سعید

## غزل

څوک څوک لکه بخرکی روښا وکړي او ځي
څوک څوک هم ننداره د دې ښکلا وکړي او ځي

زمونږ د شوق خبري ته چې ورکړو نوی رنګ
ارمان غونډي په اوښکو کي نڅا وکړي او ځي
مالدار که هره هیله کښېنوي پر تخت د ناز
فقیر هم ناهیلیو ته دوعا وکړي او ځي
ځواني نه پاته کېږي پر انګړ د ژوندانه
دا شوخه مېلمنه یوه موسکا وکړي او ځي

هر څوک چې دلته راسي لکه وي چې سوداګر
د عمر په بازار کي څه سودا وکړي او ځي

سیدالرحمن نادم

## غزل

ټول نفرت کوي له ما په دې کاله کي
مینه جرم او ګناه په دې کاله کي
زه مجبوره یم چې پرې دي ږدم جانانه
خلک نه مني اشنا په دې کاله کې
د هغې غوښتنه مه کوه زړګیه
لاس ته نه درځي لیلی په دې کاله کي
دلته ټول سرې خواره دي یو ځای سوي
ته نوم مه اخله زما په دې کاله کي
په تصویر به دې زړګیه ګوزاره کړم
که مي ژوند سو بې له تا په دې کاله کي
چې تا زما څه ببلوي زما نادمه
ورته تل به کړم ښېرا په دې کاله کي

فدامحمد اقبال

## غزل

داسي چې بیمار له کوره وزمه
ستا په انتظار له کوره وزمه
هره شپه په وږي نس بیده سمه
هر سهار نهار له کوره وزمه
ستا له میني څنګه توبه وکړمه
نه راځي انکار له کوره وزمه
نور مي له دې خلکو سره نه کېږي
ورونو کړم بېزار له کوره وزمه
نور دي تنهایي زغملای نه سمه
ځم درپسي یار له کوه وزمه
ځم چې مي بچو ته څه ګوله راوړم
وزمه بې کار له کور وزمه
ستا اقبال نور ستا په لټون سترې سو
نه وینمه لار له کور وزمه

مروا سپاس

## غزل

زړه کـي يـوه مينـه خـوږه سـاتمه
ده پـښتنه چـي يـې درنـه سـاتمه
پـه بـسم الله ورسره شـپې تېـروم
لـه ماتېـدو دا آينـه سـاتمه
چـي سـتا د حـسن صـفتونه کـوي
هغـه غـزل هغـه ټپـه سـاتمه
پـه دې هـستۍ کـي بېره نـه کـړم لـه چا
بـې لـه ښاماره خزانـه سـاتمه
زه هغـه نـه يـم چـي دوکـه ورکـوي
تينګـه بـه خپـل هـره وعـده سـاتمه
ځـای مـي پـه زړه کـي و کينـې تـه نـسته
سـپاس يـوه نيمـه ګيلـه سـاتمه

سلما صنم

## غزل

سـتا صـفت کـړي بـل قـضاوت نـه کـوي
سـترګي مـي بـل تـه حرکـت نـه کـوي

دا سـتا پـر حـسن دونـه ومنـل سـوه
اوس خـو اکـثره عبـادت نـه کـوي
زه چـي د هيلـو دنيـاګی تـه ورسـم
ټـول اميـدواره سي نفـرت نـه کـوي
زړګـی مـي سـتا د بېلتانـه پـه غـشو
ډېـر زورېـدلی دئ قـوت نـه کـوي

د صـنم زړه کـي دا يـوه څېـره ده
ځکـه د بـل مينـي تـه نيت نـه کـوي

بلال احمد درانی

## غزل

نـن وو نـژدې چـي مـي توبـه ماتـه سي
رب سره کـړې مـي وعـده ماتـه سي

چـيري چـي اوسي سـتا د فـضل پـيرې
هلتـه بـه کلـه دروازه ماتـه سي
سـاقي ډک جـام راڅخـه مـه سـپموه
چـي مـي پرېمانـه پـرې روژه ماتـه سي
کله چـي روح مـي کـوچ لـه تنـه وکـړي
هـم بـه رکـوع هـم سـجده ماتـه سي
څـوک چـي و ښکلو تـه بدرنګـه وايـي
د غم پـه سوک دي هغـه خوله ماتـه سي

بـلال احمـد لټـوم هغـه سـترګي
پـه زور د اوښکو چي يې شپه ماتـه سي

غاطفه تنده

## غزل

نـن د يـو چـا غمونـو سـتړې کړمـه
د خپـل اشـنا غمونـو سـتړې کړمـه

مـا ورتـه مينـه پـه ډالـۍ کـي ورکـړل
د بـې وفـا غمونـو سـتړې کړمـه
ژونـد کـي د شـمعي پـه شـان وسـوځېدی
وايـم رښـتيا غمونـو سـتړې کړمـه

تـا تـه بـه حـال زه عاطفـه وايمـه
چـي يـاره سـتا غمونـو سـتړې کړمـه

پوهيالی محب الله ترابي/کندهار پوهنتون

# د پير محمد کاکړ د اشعارو ښکلاييز اړخ

پير محمد کاکړ د کلاسيکو شاعرانو له ډلي څخه هغه شاعر دئ، چي په شعر و شاعرۍ کي ئې يوه بېله لاره او سبک ځانته غوره کړی دئ. په ځينو ځايونو کي د سترخوشال خټک او په ځينو برخو کي د صوفي عبدالرحمن بابا سره يو والی ښيي. مرحوم استاد پوهاند عبدالحی حبيبي د پيرمحمد کاکړ د سبک او مکتب ځانګړني داسي بيانوي:

۱. د عشق خورا نري احساسات پکښي سته. د دې سبک د شاعر کار له زړه سره دئ، لکه د رحمان بابا لسان الغيب نه دئ چي د عالم قدس څخه وړغېږي او نه وچ کلک ناسوتي دئ، بلکي د هغو تودو احساساتو څخه الهام اخلي چي آرټ او صنعت زېږوي.
۲. په دې مکتب کي تشبيهات او استعارات طبعي رنګ لري، د ظاهري ښکليتوب او مادي جمال بيان کوي او په دې ښېګڼه کي د خوشال خان سبک ته ورته دئ.
۳. الفاظ او عبارات ئې پريولي او روان دي، ژبه ئې جذابه ده.
۴. د معاني او احساساتو په تجسم او تصوير کي د ژبي خاص بلاغت استعمالوي، مطلب سپېڅلی او روښانه راوړي، تعقيد او ابهام نه خوښوي.
۵. د اخلاقو تلقين او مواعظه ئې لاهوتي نه ده، حتی المقدور د اجتماع او انساني معاشرت له خنده نه وزي. د پير محمد کاکړ سبک په دغو مميزاتو او خواصو د خوشال او رحمان بابا د سبکونو تر منځ يو فاصل خط دئ او دا سبک د آرټ له پلوه غوره او ډېر ښه دئ، (۲م، ۵۳).

د پير محمد سبک په سادګۍ، سلاست او متانت کي د خوشال او رحمان بابا مکتب ته ورته دئ او په مضمون افرينۍ او نزاکت کي او

ادبیانه تلازماتو او استعاراتو کې د حمید او
شیدا د مکتب ښېګنې لري، ځکه نو د ده
ویناوې خورا خوږې او له خونده ډکې دي او د
ده ادبي مکتب د پښتو ادب یو غوره سبک منځ
ته را ایستلی دئ چې پخوا تر ده نه وو.

دی سره له دې چې خپل کلام د شعر و
شاعرۍ په ټولو بدیعي مزایاوو او محسناتو
ښایسته کوي؛ مګر سره له دې د روانۍ،
سلاست او سادګۍ ملوني هم له لاسه نه
ورکوي او دا یوازې د ده خاصه ده،
(۲م: ۲۷۷).

زما د دې لیکنې موخه دا ده چې زه د پیر
محمد کاکړ د سبک دغه ځانګړنه چې وایي د
ده په اشعارو کې تشبیهات او استعارې طبعي
رنګ لري په اثبات ورسوم او دا روښانه کړم،
چې واقعاً نوموړی د بیان په اظهار کې څومره
قوت لري؟ تشبیه او استعاره د بیان پوهنې
برخې دي او بیان بیا اصلاً د وینا د اظهار
بېلابېلې لارې موږ ته راښیي، یعني موږ څنګه
کولای شو چې یو مطلب په بېلابېلو لارو چې
یوه ئې تر بلې ښکلې وي لوستونکو او
اورېدونکو ته وړاندې کړو، چې دا کار بیا پر
درو لارو چې تشبیه، مجاز او کنایه ده تر سره
کېږي. د دغو موضوعاتو له لارې یو کلام
رنګین او هنري کېږي. د بیتونو د مانا په
راسپړلو کې ډېره مرسته کوي او لوستونکی
فکر کولو ته هڅوي.

ډېر ځله داسې ماناوې چې څرګنده بڼه
نه لري د بیان په واسطه د تشبیه، مجاز او
کنایې له لارې د محسوساتو خوا ته رالېږدوي
یعني له یوه محسوس څیز سره یې ورته کوي،
چې زموږ په ذهن کې د یوې تابلو یا د انګریزي
په اصطلاح ایمېج په ډول را مجسم شي. مثلا:

په هر لور چې غور ځوي سرې هوا ده
د هوا فـــرس و هر لوري ته زین دی

شاعر غواړي چې هوا یا نفساني غوښتنې
موږ ته راوپېژني او له هغو څخه د ځان ساتنې
لوست راکړي نو هوا ئې له فرس(اس) سره
تشبیه کړې ده، چې پر هر لوري د تلو تابیا
لري. دا جمله (د هوا فرس و هر لوري ته زین
دئ) داسې تابلو یا ایمېج دئ، چې انځورګر که
هر څومره خواري وکړي بیا ئې هم له بیان
څخه عاجز دئ. یوازې شاعر دئ، چې دا کار
تر سره کولای شي، (۳م، ۳۷او ۳۸).

د پیرمحمد کاکړ په اشعارو کې چې ما
څومره مطالعه وکړه د بیان پوهنې د برخې
داسې څه به نه وي، چې د ده په اشعارو کې
دې نه وي موجود. خو د وخت د کموالي له
امله مې پر ځینو موضوعاتو بحث وکړ.

خال د وروځو په پیوند چې صنم کښېښو
ما خپل ځـــان لره محـــراب و امام ونیو
(۲م: ۱۰۱)

په پورته بیت کې خال له امام او وروځې
له محراب سره تشبیه شوي دي. خپله د
وروځو په پیوند کې خال ایښوول یو ښکلی
حسي انځور زموږ مخې ته ږدي او بیا بیرته د
امام او محراب سره تشبیه کول هم حسي رنګ
لري، چې د پیرمحمد کاکړ لوړه قریحه ترې له
ورایه معلومېږي.

تماشا مې د ګلـرخ کـــړه په ګلزار کې
سپې رقیب مې لکه خار په لمن لک شه
(۲م: ۱۱۴)

د رقیب له ترس و بیمه و دلـدار ته
لکه غل په توره شپه ځم بې سراج
(۲م: ۵۸)

په لومړي بیت کې شاعر له ډېر حسده رقیب ته د سپي صفت کاروي او بیا ئې له خاره سره تشبېه کوي او په ورپسې بیت کې بیا د همدې رقیب له ډاره ځان له غله سره تشبېه کوي او د یار دیدن ته د ده له ډاره په شپه کې بې سراجه روان دئ.

کله کله بیا د تجاهل په ډول پر مخ د خط راتلل د سپوږمۍ سره چې په شپول کې راګېره وي تشبیه کوي، مانا دا چې ښه پوهېږي چې د دلبر پر سپین رخسار ئې خط محیط شوی؛ خو دی وایي، چې نه دا به سپوږمۍ په هاله کې راګېره وي. لکه:

دا مهتاب دی چې ښــکارېږي په هاله کې
که چاپېر دی د دلبر پر سپین رخسار خط
(۲م: ۷۸)

په ځینو بیتونو کې شاعر ځان له موسی علیه السلام سره تشبېه کوي، چې د الهي محبوب د لیدو ځواک نه لري، یعني یو ډول تلمیحي تشبېه ده، چې د موسی علیه السلام کیسې ته اشاره کوي. کله چې موسی علیه السلام د الله تعالی سره د طور په غره کې خبرې کولې نو موسی علیه السلام ورته وویل، چې ما ته ځان راوښیه. الله تعالی ورته وفرمایل، چې: "لن تراني" ته مې نه شې لیدای...؛نو شاعر هم همدا وایي چې زه ئې لکه موسی علیه السلام نه شم لیدای او د "لن تراني" په خطاب ئې بې دیداره سوځم.

زه په خطاب د لن تراني بې دیدنه سوځم
که منتظر لکه موسی د طور په ســر ودرم
(۲م: ۹۵)

کله کله خو دومره نازکه او نادره تشبېه کاروي، چې لوستونکی ورته ګوته په غاښ پاتېږي. لکه:

ستا د حسن په جلوه سره بېتاب شوم
لکه موی د اور له تابه پېچ و تاب شـوم
(۲م: ۹۶)

استعاره بیا د تشبیه پرمختللی شکل دئ، یعني که چیرې مورږ د طرفینو څخه یو حذف کړو نو تشبېه په استعاره بدلېږي؛ استعاره د مجاز په بحث کې شاملېږي، چې موږ د دې په وسیله د یوې کلمې څخه د حقیقي مانا پر ځای مجازي مانا اخلو؛ خو ځینې قرائین به موجود وي. پیرمحمد کاکړ په خپلو اشعارو کې خورا ښکلې او رنګینې استعارې کارولې او خپله لوړه طبع ئې پکښې ازمویلې ده. لکه:

کومو خاورو سره خلط هغه سنبل شو
چې پر مـــخ د ناز پرور به تاوېـــــده
(۲م: ۱۱۹)

یوه خبره چې یادونه ئې اړینه بولم دا ده، چې په تشبېه کې خبره د مشابهت ده مګر په استعاره کې د یوشانوالي دعوه ده، یعني شاعر دا نه وایي چې زلفې ئې د سنبل غوندې دي بلکې وایي چې سنبل دي. دلته نو هم شاعر سنبل د زلفو له پاره استعاره کړې ده، چې سنبل پکښې مستعار منه او زلفې چې نه دي ذکر مستعار له دي. پر مخ باندې تاوېدل یا

يوازي مخ هغه قرينه ده چي زمور ذهن د سنبل څخه زلفو ته کشوي.

بنفشه ئې د سنبل په سايه زېږي
مختلف تخم کرلی دی باغبان ګڼ
(۲م: ۹۸)

دلته هم بنفشه د شين خط او سنبل د زلفو له پاره استعاره شوي دي، چي شاعر په ډېر ښکلي انداز خپله خبره تر مخاطبه رسوي، يوه بله خبره چي يادونه ئې اړينه بولم هغه د شنه خط ده. پخوا عموماً دوه ډوله رنګونه کارېدل او مشهور ول، يو تت او بل روښانه رنګ، تور، شين او زرغون په تتو رنګونو او سپين، زېړ او سور په روښانه رنګونو کي راتلل، ځکه خو موږ سرو زرو ته چي زېړ دي سره وايو، شيدا هم د هند سبزان ډېر يادوي حال دا چي شنه خو نه دي.

چي را ياد ئې سپن غاښونه سره لبان شي
تر چشمانو مي اوربږي درمرجان ګڼ
(۲م: ۹۸)

د شاعر کمال د دې بيت څخه تاسو ته لا ښه معلوم شو، چي تشبيه او استعاره يو ځای کاروي لومړی غاښونه له دُرو سره او لبان له مرجانو سره تشبېه کوي بيا همدغه دُر مرجان د اوښکو له پاره استعاره کوي، چشمان يا سترګي هغه قرينه ده چي زمور ذهن له درمرجان څخه اوښکو ته بيايي. هسې خو هم له سترګو درمرجان نه اوري.

دا مي د پيرمحمد کاکړ د سبک د يوې ځانګړني د اثبات له پاره د ده د اشعارو له سمندر څخه يو څو ځاځکي د نمونې په ډول تاسو قدرمنو ته وړاندي کړل، خو زه په زغرده

ويلای شم چي د پير محمد کاکړ په دېوان کي هر ډول ښکلاوي په پرېمانه کچه موندل کېږي. نور مينه وال کولای شي چي ويې څېړي. د مانا له مخي د ده په کلام کي تصوفي، اخلاقي، عشقي او نور هر ډول موضوعات موندل کېږي چي د ده فکر ترې له ورايه څرګندېږي.

په پای کي زه خپله ليکنه د ده په دې بيت چي تعالي ئې پکښې کړې ده پای ته رسوم. حال دا چي شاعرانه تعالي اوس په صنايعو کي نه راځي، ځکه هغه خوند او رنګ چي په نورو صنايعو کي لکه حسن تعليل او مدعا و مثل يا نورو کي وي په دې کي نشته؛ خو زه د ده دا ادعا واقيعت ګڼم:

په ډېر زهد به زړه ويښ نه کړې زاهده
راشه ورد د پير محمد سوی غزل کا
(۲م: ۵۳)

## ماخذونه:


۱. حبيبي، پوهاند عبدالحی (۱۳۹۱ ل. ل)، پښتانه شعرا لومړی ټوک، علامه رشاد خپرندويه ټولنه، کندهار.
۲. کاکړ، پير محمد، (۱۳۸۹ ل. ل) د پيرمحمد کاکړ دېوان، د استاد ښنوا په مقابله او د استاد حبيب الله رفيع په سريزه، صحاف نشراتي موسسه - کوټه.
۳. همکار، محمد ابراهيم، (۱۳۹۰ ل. ل) ، ادبي فنون بيان، مومند خپرندويه ټولنه ،جلال اباد.




پوهندوی بريالی باجوړی

# د پیرمحمد کاکړ ژوند او شعر

د پښتو ادبیاتو د منځنۍ دورې د نومیالي او خوږ ژبي شاعر پیرمحمد کاکړ د ژوند ډېره برخه په تیاره کي ده. که څه هم نوموړی د احمدشاهي دربار سره تړلی او له مهمو اشخاصو څخه وو خو نه په سرکاري فایلونو او نه په شخصي توګه د ده په اړه کوم معلومات شته. یوازي د ښاغلي حبیب الله رفیع د وینا له مخي د شاه محمود سدوزي په وخت کي ئې په یو رسمي سند کي د کندهار د نورو علماوو سره نوم راغلی چي مواجب ئې درلودل.

شمس الدین کاکړ ئې په یوه شعر کي د قبیلې یادونه کړې ده چي د کاکړ قبیلې ته منسوب دئ، خو دی په خپلو ځینو شعرونو کي له کاکړو نه ښه زړه نه لري.

د ژوب د سیمي د یعقوبه کلي اوسېدونکی وو. د زیږېدني او مړیني دقیقي نېټې ئې نه دي معلومي خو زموږ د څېړونکو د څېړني له مخي د (۱۱۲۰) او (۱۱۳۰ هـ ق) کلونو تر منځ زیږېدلی او تر (۱۲۱۶هـ ق) پوري ئې ژوند یقیني دئ.

پیرمحمد کاکړ د خپل وخت مروجه علوم لوستي وو او د درس او تدریس په چارو کې ئې عمر تېر کړی دئ. د احمدشاه بابا په وخت کې کندهار ته راغوښتل شوی دئ، خو داسي ښکاري چي ده نه غوښتل او په زوره کندهار ته راوستل شوی دئ. پیرمحمد کاکړ په خپل یو شعر کي خپل راتګ دا ډول انځوروي:

خواب مي لیدلی چي پر بل لور ځم
له خپله کوره په شورماشور ځم
د بڼ طوطي یم په زړه ویشتلی
له پاسه کښته ځنګونه خور ځم
مرکب و ما ته د فراق زین شو
اهونه کاږم وربانـدي سور ځم
کوتوال مي لاس دئ تر شا تړلی
خجل و لور ته د شاه سر تور ځم
جدايي اور ده د ښو یارانو
چاره مي نشته پر لور د اور ځم
غماز مي لار ده راته نیولې
رضا مي نه ده د زړه په زور ځم
غم د ځان ژاړم زه "پیرمحمده!"
که څه مزار ته د پلار و مور ځم

دېوان: ۱۰۲ مخ

کله چي پیرمحمد کاکړ کندهار ته راوستل شوی نو بیا د شهزاده سلیمان او د شاهي کورنۍ د نورو غړو په تدریس بوخت شوی دئ. پیرمحمد کاکړ له دغه تدریس څخه هم ښه زړه نه لري او پر دې پښېمانه دئ چي سفله و ته ئې علم وښود.

پیرمحمد کاکړ په دربار کي یوازي د شهزاده سلیمان ستاینه کوي او د احمدشاه بابا او تېمورشاه او نورو څخه ښه زړه نه لري او داسي ښکاري چي ډېر ځورول شوی دئ. د پښتو ژبي لومړنی ګرامر (معرفة الافغاني) چي تطبیقي ښه لري او د شهزاده سلیمان له پاره ئې لیکلی په هغه کي د شهزاده سلیمان په پاچاهي خوښي څرګندوي او د احمدشاه بابا وخت له زندانه سره تشبیه کوي:

شاه سلیمان د حکم نمر سو
کل عالم پرې منور سو
پر عالم فیض د جواد سه
د نعمت شکر مقصود سه
پښتانه وربانـدي ښاد سوه
له همه غمه آزاد سوه
کندهار چي درست زندان و
بیا زندان ورته حیران و
په دې وخت جنت نظیر سو
هم د مصره دلپذیر سو

دېوان، د رفیع سریزه: ۱۰ مخ

پیرمحمد کاکړ د خپل تدریس ثمره دا ډول څرګندوي چي پرته له پښېمانۍ او د خپل ځان د ملامتۍ نه بل څه نه وي:

و سفله ته مي تعلیم د علم وکړ
نه ادب مي ځني بیا موند نه حرمت
تېره توره مي په لاس د ظالم ورکړه
ترې وېرېږم اوس د ځان په هلاکت
بې محله چي مي عرض کړ شریف علم
کاږم ډېر له دې عمله خجالت
د نااهلو تعلیم عین معصیت دئ
کړم مدام وربانـدي اه د ندمت
لکه شتا شو بې ثمره پیرمحمده
خدای دي هسي د چا نه کړي مشقت

دېوان: ۴۰ مخ

پیرمحمد کاکړ له هماغو کسانو څخه دي چې ډېر په عذاب شوي چې ده ورته درس ورکړی، دی ئې دومره ځورولی چې د مرګ صرفه ئې هم پرې نه ده کړې. دی دې ته اړ شوی چې هغوی ته ښېرې وکړي او د زړه له تله ئې دا ښېرې را ایستلي چې د ده درد او تکلیف پکې پروت دئ:

در په در دي کړم غمازه در په در شې
شرمنده هم تر همزولو په محشر شې
ظلم و جور بې تا کله پر ما څوک کا
د جورونو په میخ کوب زېر و زبر شې
په هر کار کي دي آزار زما مطلب دئ
د آزار په تېره توره برابر شې
مه دي بېخ وه مه دي بر، مه دي برکت وه
یکباره بې بېخ و بره وچ وزر شې
نه مي حق و ته غوږ نیسې نه حق اورې
که به حق د معلم وي ته کور کر شې
پر دنیا دي مرګ له تندي څخه غواړم
په عقبا محروم له حوضه د کوثر شې
نعمتونه د جنت پر تا حرام شه
اور لړونی په سره اور کي د سقر شې
ډېري ویني مي د زړه دي تا نوشلي
ته سېراب په خپلو وینو د ځیګر شې
لکه تا کړ "پیرمحمد" بې بال و پره
په دوه کونه هسي ته بې بال و پر شې

دېوان: ۱۴۷ مخ

د پیرمحمد کاکړ دېوان له درد او سوز څخه ډک دئ، ځکه چې د ده ژوند هم سراسر یوه تراژیدي ده. استاد بېنوا وایي چې د پیرمحمد کاکړ په دېوان کي داسي یو شعر نشته چې خوښي تر ېنه ښکاره شي. د ده سره ډېر دردونه ملګري دي اول په زور او جبر د ده راوستل کندهار ته چې د عمر تر پایه د خپل وطن او خلکو یاد ئې ژړوي. دویم په دربار کي د چاراواکو نه د ده زړه چاودن چې ډېر زوربدلی دئ. دریم د ده د درې لورګانو بې وخته مړینه چې ماهره اووه کلنه، فاطمه یوولس کلنه او صالحه نهه کلنه وه چې دی ئې ډېر غمجن کړی دئ. همدارنګه د ده خپله محبوبه هم له ده څخه یا په ژوند بېله شوې او یا په مړینه چې دی ئې په جدایي کي سوځي.

د پیرمحمد کاکړ ژوند د دغو دردونو مجموعه ده چې په شعر کي ئې هم ځلېږي او تر پایه د درد شاعري ده. ټوله شاعري ئې فراق او جدایي ده. د وطن جدایي، د لورګانو جدایي، د خپلي محبوبي جدایي او بیا د ظالمانو له خوا د ده ځورېدل همدغه د پیرمحمد کاکړ د شعر اصلي موضوعات دي.

دی په خپل شعر کي تر پایه خپل وطن یادوي. د خپل وطن او خلکو د لیدلو ارمان کوي او زړه ئې کړېږي:

مور له هیواده تنها راغلي یو
د بې طوطیان یو په دام وتلي یو
غمازه ظلم رابانـدي مه کـړه
د ښـو یـارانو فـراق نتلـي یـو

پیرمحمد هغو کسانو ډېر ځورولی چې ده ورته درس ورکړی او علم ئې ورته ښوولی ځکه خو ډېر دردېدلی چې د ده د توقع خلاف ئې ورسره ظلم کړی دئ:

څـوک چـي وکـړي د نـااهلو پـرورش
لـه آزاره بـه ئـې تـل کانـدي نـالش

چي تعليم کړم بدګوهر ته آزار مومم
زما خوار په ځان بلا شو خپل دانش
چي رباب ئې د مجلس وم شپه او ورځ
هغه خلک راکوي د غوږ مالش
دېوان: ۸۱ مخ

پيرمحمد کاکړ د خپلي قبيلې نه هم ښه زړه نه لري او وايي:

د کاکړ په لوی و کم کي تميز نشته
خرمهره په بها پېري د ګوهر
دېوان: ۷۵ مخ

همدارنګه کابل ته چي راغلی او يا رابلل شوی له کابل نه ئې هم ښه زړه نه دئ وړی:

د ښو بدو تميز نشته په کابل کي
خرم زړه چي ورته راوړم رنجيده شي
دېوان: ۱۶۸ مخ

څرنګه چي د پيرمحمد کاکړ ژوند د مختلفو دردونو مجموعه ده، همدارنګه ئې شعر هم د ځينو شاعرانو رنګونه په خپل ځان کي لري. ده پخواني شاعران لوستي او د رحمان بابا، خوشحال خان خټک او حميد مومند د شعر اغېز پکښي څرګندېږي. په تېره بيا د رحمان بابا د شعر د اغېز د ډېروالي په وجه ئې د رحمان بابا د سبک پيرو ګڼي خو د دې تر څنګه د خوشحال اغېز پرې هم زيات دئ. نو له همدې کبله ارواښاد علامه حبيبي صاحب دی د ځانګړي سبک خاوند ګڼي او د سبک ځانګړتياوي ورته ټاکي.

پخپله پيرمحمد کاکړ وايي:

که هر څه وايي نازک شاعران شعر
ولي دوی ګڼي معجز د رحمان شعر
سوز ګداز د محبت ئې مګر زيات و
چي سوزان ئې هسي شان کړ بيان شعر
جوړ په شعر کي رحمان غيب اللسان دئ
په دا څېر نشته هرګز د انسان شعر
تر مصراع ئې زار شه لاړ د مرغلرو
په څه تار ئې اويخته کړ يکسان شعر
بل په شعر کي هم سيال د خوشحال نشته
که څه درست دئ دا د ده سخندان شعر
که څوک بحر مواج وايي ورته ښايي
په دېوان کي ئې مينده شي هرشان شعر
هيڅ تر شعر د رحمان به ډېر کم نه وي
و منصف ته د خټک خوشحال خان شعر
لکه شعر دئ د ده په پښتونخوا کي
بل به کم وي په دا وخت د افغان شعر
بيا رنګين شعر بيان عبدالقادر کړ
دا اشرف دئ هم تر ده نه سوزان شعر
پس له دويه موشګاف عبدالحميد دئ
چي ئې ووې ښه نازک نکته دان شعر
د ميرزا شعر به جوړ وولي دربغه
په وحشي الفاظو ده کړ ويران شعر
د مشهورو شاعرانو حال مي ووې
نه و ما و ته د نورو عيان شعر
دېوان: ۷۶ – ۷۷ مخونه

اوس به ووينو چي پيرمحمد کاکړ په دغو شاعرانو کي له چا نه او څومره متاثر دئ. که د پيرمحمد کاکړ دېوان په غور ولوستل شي نو دا به ورته څرګنده شي چي په لومړي قدم کي د رحمان بابا نه ډېر متاثر دئ، لکه څنګه چي په خپل شعر کي هم د لومړيتوب حق ده ته ورکوي.

د پيرمحمد کاکړ په دېوان کي چي کوم نعتونه راغلي دي، د رحمان بابا په پيروي ئې

ویلي دي، یوازي په ځینو کلماتو کي ئې تغیر راوستی دئ.

پیرمحمد کاکړ وایي:

اول نور که د رسول نه وای پیدا
روښنايي به پیدا نه وای په دنیا

دېوان: ۴۷ مخ

رحمان بابا وایي:

که صــورت د محــمد نه وای پیدا
پیدا کړې به خدای نه وای دا دنیا

دېوان: ۴۵ مخ

همدارنګه پیرمحمد کاکړ په یو بل نعت کي وایي:

په نمه د هغه خــدای مي دا بیان دئ
چي یو نوم ئې په نومونو کي غفار دئ

دېوان: ۱۴۱ مخ

رحمان بابا وایي:

په نامــه د هغه خــدای مي دا بیان دئ
چي یو نوم ئې په نومونو کي سبحان دئ

دېوان: ۴۲۴ مخ

پیرمحمد کاکړ وایي:

ته چي سینګار په برندو سترګو د آهو کړې
نه پوهــېږم دا هــنر دئ که جادو کړې؟

دېوان: ۱۴۳ مخ

دا د رحمان بابا هغه غزله ده چي وایي:

تا چي مخ د پري سترګي د آهو کړې
ترو پري يې که آهو يې که جادو کړې

پیرمحمد کاکړ:

چي دلبر مي شو ساقي په لاس مي جام دئ
نن حاصــل د تشـــنه ګانو د زړه کام دئ

دېوان: ۱۷۱ مخ

رحمان بابا:

چي تر څنګه مي دلبر په لاس کي جام دئ
نن اورنګ د زمـــانې زمـــا غــلام دئ

دېوان: ۴۲۰ مخ

پیرمحمد کاکړ:

لږ نوبت د عزیز عمر عنیمت دئ
دوباره راتلونی نه دی وار د عمر

رحمان:

تل به نه وي شګفته ګلـزار د عمر
نه به جوړ وي همېشه بازار د عمر

رحمان:

دوباره دي راتله نشـــــــته په دنیا
نن دي وار دئ که دروغ کړې که رښتیا

دېوان: ۱۴۳ مخ

پیرمحمد کاکړ:

یو درهم و دینار نه لري په کور کي
زړه تر هر چــا توانګر لــري قانع

رحمان:

څوک دي راکاندي قسم په کردګار
که په کــور کي یا درهم لرم دینار
زه دینار او درهم نه لرم په کــور کي
ولي نـــور خلک مي بــولي دنیادار

دېوان: ۱۵۱ مخ

پیرمحمد کاکړ:

دربغــه لاړ شــو هغــه ښکلي مهــین خلــق
پــه ظـاهر پــه بـاطن کــي سـنګین خلـق

د هــر بــاغ ګلونــه څــي اغــزي پــاتېږي
خلـط لـه خـاورو سـره ویـنم رنګـین خلـق

مــا و تــا غونــدي خــسني د چــا یــاد دي
ګـوره څـه شـو تـر هـر چـا بهتـرین خلـق

خوږژوندون به په هر چا باندي مرګ تریخ کا
دې زمري تر ستوني تېر کړه شېرین خلق

که هر څو خندا هوس کړې پیرمحمده!
جدايي به عاقبت کړي غمګین خلق
دېوان: ۸۹ مخ

رحمان:
خدايه څه شو هغه ښکلي ښکلي خلق
په ظاهر په باطن سپین سپېڅلي خلق
دېوان: ۱۸۵ مخ

پیرمحمد کاکړ:
ښه یاران په ارمان تللي دي پوهېږم
له فاني رباطه لښلي دي پوهېږم
قبرستان راته د ښکلو ګلستان شو
په دا مزکه ګل کرلي دي پوهېږم
دېوان: ۹۷ مخ

رحمان:
بیا دي نوي شراب څښلي دي پوهېږم
په رخسار دي ګل کرلي دي پوهېږم
دېوان: ۲۱۳ مخ

پیرمحمد کاکړ:
وسولم ایره شوم د دلبر پر استانه
نه ګوري له خیاله سم و ما ته جانانه
دېوان: ۱۳۷ مخ

رحمان:
دېر عمر مي تېر کړ بېهوده په زمانه
نور دي زما سر وي او د ترکو استانه

په پورته شعرونو کي ولیدل شوه چي پیرمحمد کاکړ د رحمان بابا په پیروي کي څومره شعرونه ویلي دي. په ځينو کي ئې خیال او مفهوم رااخیستی او قافیه ئې ورته بدله کړې ده او په ځينو کي خو ئې کټ مټ هماغه قافيې او ردیفونه را اخیستي دي. اوس به ووینو چي د خوشحال خان خټک نه څومره متاثر دئ او د خوشحال د شاعرۍ رنګ پکښي څومره ځلېږي.

پیرمحمد کاکړ:
دواړي شونډي دي شکري نه دي څه دي
قند د یار خوږې خبري نه دي څه دي

چي زلۍ غوندي ځلېږي په خندا کي
سپینکي غاښ دي مرغلري نه دي څه دي

درست عالم چي تر قامت د کښلو پست دي
په دا باغ کي سروي ستري نه دي څه دي

چي په ناز و په غمزو د مین زړه وړي
پریرويي شیوه ګري نه دي څه دي

بېګناه چي مي په تېغ د جفا وژني
جفا جويي ستمګري نه دي څه دي

عقل و هوش چي ئې له ما نه ربوده کړ
سیه چشمي سحرګري نه دي څه دي
دېوان: ۱۵۱ مخ

خوشحال:
خوږې شونډي دي شکري نه دي څه دي
ښکلي غاښ دي مرغلري نه دي څه دي
چي تسخیر په تورو سترګو کا د زړونو
سیه چشمي سحرګري نه دي څه دي
چي د زلفو په زنځیر ئې زمري بند کړل
هوسۍ سترګي زوروري نه دي څه دي

چې د باغ سبرې ئې پستې تر قامت دې
پښتنې په قامت سترې نه دې څه دې
دېوان: ۳۸۰ مخ

پیرمحمد کاکړ:
زړه چې شگوفه شو خو اسرار لره که نه
ژبه چې تېره شوه خو گفتار لره که نه
ولې و مشتاق ته یار له مخه نقاب نیسي
رب چې نعمت ورکړ خو اظهار لره که نه
دېوان: ۱۳۱ مخ

خوشحال:
توره چې تېر ېږي خو گزار لره که نه
زلفې چې ول ول شي خو خپل یار لره که نه
ولې راته وایې چې پر ښکلو نظر مه کړه
سترگې چې پیدا دې خو دیدار لره که نه
دېوان: ۲۶۳ مخ

پیرمحمد کاکړ:
دریغه ورک به مې غفلت وې که به نه وې
له دې رنځه په صحت وې که به نه وې
پر دنیا مې عمر تېر کړ په فرحت کې
پس له مرگه به فرحت وې که به نه وې
دېوان: ۱۵۶ مخ

خوشحال:
ساقي تل به دې دا ست وې که به نه وې
له جهانه به مهلت وې که به نه وې
راشه ډک د میو جام په مې ناب کړه
تل به هسې فراغت وې که به نه وې
هر هوس چې په صورت کړي نن ساعت دئ
گوره گانده به صورت وې که به نه وې
په رښتیا و ما ته ووایه طبیبه!
چې د رنځ به مې صحت وې که به نه وې
دېوان: ۳۹۷ مخ

پیرمحمد کاکړ:
که زه نه وای عشق به تا لره بلل څوک
پر بل اور به دې د حسن کړول څوک
گلرخان گهې جفا گهې وفا کړي
نه کړي تا غوندې هیڅکله جفا تل څوک
خپل قسمت دئ چې و ما و ته رسېږي
گنې زه او ستا د شونډو ښکلول څوک
د ښکار غوښې که خوړې نه وای دلبره
تر گړنگ به پسې څه ته پرېوتل څوک
دېوان: ۹۰ مخ

خوشحال:
که زه نه وای تا به څان لره بلل څوک
پر پالنگ به دې دا هسې درختل څوک
واړه عشق دئ چې ئې سر راته گیا کړ
گنې زه په څان مین د سر ښندل څوک
بدرگه که محبت راسره نه وای
یک تنها به پر خونخوارو لارو تلل څوک
ته مې وژنه د قصاص اندېښنه مه کړه
د خپل خون په تور به ونیسم یو بل څوک
تا په خپله سپینه خوله خوشحال ته ورکړه
گنې دی دا هسې شونډې ښکلول څوک
دېوان: ۱۰۴ مخ

په دغو مثالونو کې هم وینو چې پیرمحمد کاکړ د خوشحال خیال او مفهوم او حتی پوره مصرعې او بیتونه را اخیستي دي. د خوشحال خان رنگ پرې دومره غالب دئ چې د رحمان تر رنگ کم نه دئ.

همدارنگه په دریمه درجه کې پیرمحمد کاکړ له حمید م موند نه هم متاثر دئ او د هغه د ځینو غزلو په پیروۍ ئې خپل شعرونه ویلي دي. د پیرمحمد کاکړ

حمدشریف هم د حمید مومند د حمد پر طرز ویل شوی دئ:

پیرمحمد کاکړ:

الهي توفیق د حمد و د ثنا را
په ثنا کي تر بلبل ژبه ګویا را

دېوان: ۴۶ مخ

حمید مومند:

الهي د محبت ســوز و د ګــداز را
په دا اور کي د ستي سمندر ساز را

پیرمحمد کاکړ:

عـشق د یـار پـه مـا منـت د اغیـار و کـیښ
پـه خـاطر د ګـل مـي جـور د خـار و کـیښ
پـه تـش خیـال د مخ ئې ژیـړه ګونـه ګـرځم
دې افتـاب راځخـه نـم د رخـسار و کـیښ
اند ېــښنو د تــورو زلفــو ســودایي کــړم
د صـنعان پـه دود مـي سـر تـر زنـار و کـیښ

حمید مومند:

اهو چشمو ئــې چـي زړه پـه افسون و کـیښ
هغــو ســر لــه ودانــۍ پــه هــامون و کــیښ
انتظــار ئــې د نــرګس ګونــه کــړه ژیــړه
ســروي ســر پـسي لـه باغـه بېـرون و کـیښ
پـه هغــو د هــوس وړو کــي ټولــون نــه کــا
چـي لـه غـاړي بـې زنځیـر د جنـون و کـیښ

همدارنګــه د هنــدي ســبک ځینــي رنګینــۍ او نازکخیـالۍ چي حمېد مومنـد پـه پښتو ادب کي رامنځته ک[illegible]محمد کـاکړ پـه شـعر کـي هـم ځ[illegible]ـه رنګینـۍ راښکاره کېږي. په تې[illegible] و خـال خبـره چـي پـه هنـدي مکتـ[illegible]ـړه تـر سـتر ګو کېږي.

باریک خط پر ښکلي مخ د دلبر ګوره
محبوس شوی په هاله کي قمر ګوره

د مخ حسن ئې په خط کي هنوز زېب کا
که هر ځو د ګل پر پاڼه غـبار ښکـښناست

په غبار د خط ئې وچ د رخسار آب شو
د بهار په تــازه ګلــو شـو خزان ګډ

او به خور مي دئ مدم د زړه له زیمه
مــردمک پرې ګرځــوم لکه ارهټ

د رحمان بابا، خوشحال خان او حمید مومند د شعر له رنګونو سره د پیرمحمد کاکړ خپل رنګ هو یو ځای شوی او یوه ښکلې رنګینه تابلوئې جوړه کړې ده:

یـاد کـړه هغـه وخـت چـي تماشـا کـړه مـا او تـا
یـا د ګـل خنـدا وه یـا خنـدا کـړه مـا او تـا
حکم د باد نه و چي تر منځـه زما او ستا شي
کلــه پــه دلال د عـشق سـودا کـړه مـا او تـا
نـوم د بېلتانه چي به غماز په ژبه واخیست
ببلــه بــه ژړا جــدا جــدا کــړه مــا او تــا

دېوان: ۵۵ مخ

پیرمحمد کاکړ په همدغو غمونو او دردونو کي په کندهار کي وفات شوی او د حضرت جي صاحب زیارت ته نژدې ښخ دئ:

کامراني دي ببېردان کړي په دنیا کي
بېنـوا پیرمحـــــمد راغی بېنـوا لاړ





ليکوال: محمدابراهيم عطايي

# د نړۍ د بېلوبېلو ممالکو ادب

(۱۱)

## هسپانيه

د کنگوو اثر:

### د الکبير وادي او د اندلس رودخانه

اې د ټولو رودخانو ټولواکه! ستا نوم دي همېشه لوړ او قوت دې پيوسته ډېر اوسه...

د سروي د لوړي قدي درختي حلقه ستا پر گونجي گونجي تندي داسي ايسي لکه تاج، ته تمامه ورځ په شاهي ډال و ډيل د اندلس پر زرغونه مځکه پېچ و تاب تېرېږي.

او لاس پر خوله نيولی د سگورا د غره د تخته سنگانو څخه چي ستا زانگو ده تېرېږي.

هغه چا ته چي اوس په احترام ستا د ساحل پر تېرو ولاړ او په خپلو هغو سترگو چي ستا ښکلا گوري، وايه:

آيا تا تر اوسه د هغو ښکلو څخه چي ستا په شفافو اوبو کي ئې خپل جمال کتلی، زما رنگه ښايست ليدلی؟ او دا ډول شهلا او عابد فريبه سترگي دي د بل کوم محبوب په نظر درغلي؟

(۱۲)

## چکوسلواکيا

د رشيکي اثر:

### د ميني گرمي

د دې له پاره چي و يو اندک عشق ته ورسېږم ښايي د نړۍ تر آخرين خط پوري پياده ولاړ سم، په لڅ سر او پښو دښت و دامان وغواړم، تر لوړو غرو چي په يخي او سپينه واوره

پوښلي وي باید تېر سم ... او همدغه ډول د پسرلي په ګرمي ځان ګرم کړم. د بادو او طوفانو له منځه باید ځان تېر کړم د باد د نالې پر ځای به د خوش آوازو مرغانو ږغونه واورم.

تر وچو بیابانو به تېر سم، او خپل زړه به د پسرلني سهار د ژلیو په عطر باندي معطر کړم. د دې له پاره چي د عشق و یو اندک ټکي ته ورسېږم د نړۍ تر آخره پوري به پیاده ولاړ سم، او لکه هغه فقیران چي د خلکو پر دروازه د صدقې په انتظار درېږي زه به هم د ډېرو دروازه وټکوم او د عشق و محبت ګدایي به وکړم.

(۱۳)

## هنګري

د ساندور الکسندر پتوفي اثر:

### غروب

لمر لکه مړاوی ګل آرام آرام خپل سر د مځکي و خوا ته ټیټوي، او په غم سره خپل مخ په مځکه پوري مښلوي، خپل له طلایي جام څخه ورو ورو پرله پسې د ګلانو پر پاڼو زریني اشعې پاشي.

نړۍ آرامه او خاموشه ده، د ورځي غوغا خپل ځای د ماښام و آرامۍ ته سپاري، تنها یو شی چي اورېده کېږي هغه د ماښام د ناقوس آواز دئ، چي له لیرې ژمنا و غوړو ته رارسېږي، چي لکه آسماني آهنګ له زړه سره تماس لري، دا هغه ډول آهنګ دئ چي ته به وایې چي د یوه لیرې او ښکلي ستوري څخه پورته کېږي.

(۱۴)

## سویس

د هانري اسپیس اثر:

### د ناپېژندګلوۍ عالم

زه نور په هیڅ نه پوهېږم، هیڅ شی نه راته معلومېږي او د امید لاسونه مي و آسمان ته پورته نیولي، خپل په شاوخوا کي هیڅ لار نه راته معلومېږي، ځکه هر څه چي وینم تاریکه او ایرې مي تر سترګو کېږي.

هري خوا ته د مرګ او تقدیر اوریځي دي، چي زما پر سر خپله سایه اچوي. د زمانې ساعتونه او دقیقې په چابکي خپل سفر قطع کوي او بې اعتنا تېرېږي ... اوس ما خپل نوم هېر کړی او خپل مسکن نه پېژنم نا امیده او سرګردانه د ماښام څخه تر سبا پوري ګرځم.

زه په هیڅ نه پوهېږم ... د ښه او امید بخښه شي امید مي اوس پرې سوی، د هغه وړوکي ماشوم مثال لرم چي په ژړا د مور په سراغ پسي روان وي، ځکه له ډېره وخته زه ... یوازي پرې ایښی او د ارزوګانو دروازه یې راباندي ټپه کړېده.

(۱۵)

## پرتګال

د کاموئنس اثر:

### سفر

تر څو پوري دا د غم او نا امیدیو په ګریو وژاړم؟

مګر و ماته روښانه او امیدبخښه ساعتونه په ژوند کي نه دي راتلونکي؟ آیا تر څو به زه پر دې ترخو ګریو ژړېږم؟

اې د تاج سينده!

ولي خپل موجونه چې په دې سفر کي تر ستوني پوري زما غاړي کښېکاږي نه در ګرځوې؟ ولي زما د خوشحاله ورځو سره ته حسد کوې، او لار راباندي بندوې او د ژبې په زخم مي آزاروې.

اې غرونو!

چې تاسي به کله راباندي مهربانه او کله راباندي سخت واست، د خدای په امان.

اې ګرانه دلداره ته هم خوښ اوسه! ګرانه که د فساد او فراموشۍ له بادې ځخه سرمست نه سوې او هيڅ شی دي هېر نه کړه، ما په خپل خاطر کي لره، کله کله زما دا نغمې لوله او پر مرګ مي ژاړه، ته نه وينې چې سختي او کلکي ډېري چې له هر ډول احساس ځخه عاري دي کوښښ کوي چې په خپلو خاموشه کتلو سره و ما ته تسلا راکړي او د زړه غم مي راتسکين کړي.

کوم وخت چې وړمې په آرامي سره په الوتلو شروع وکړه، ما بادبان خلاص کړ او د ماڼوګانو پر چم په هغه وخت کي چې بادبانونه د باد د الوتلو له جهته ځرخوي ما فرياد وکړ:

او د (سفر دي په خير) نارې مي و اسمان ته ورسېدې او پسي ورو ورو زما کتني د درياب پر موجونو باندي په آرامي په ښويېدو پيل وکړ. کرار کرار زما په نظر کي زموږ د ځکي تپې کوچنۍ سوې او وروسته ورکي سوې، تر اوسه د تاج د رود موجونه وينم چې يو پر بل سر ببره لغړي او په ليري افق کي تر اوسه د سينترا غرونه معلومېږي.

په دې فکر کي چې زه اوس د خپل محبوب ځکه ترک کوم روح مي تر ډېر فشار لاندي کېږي ځه وخت نه وو تېر سوی چې زما د ځکي آخرين آثار هم ورک سوه او زما په پيرامون کي غير له اسمان او درياب ځخه بل هيڅ شی نه ښکارېدله.

په دې ترتيب سره ما د ناپېژندونکي درياب په هغه سفر پيل وکړ چې تر ما دمخه هيڅوک پر دې لار نه وه تللي، ناپېژندونکو جزايرو ته ورغلم چې تر اوسه د بشر سترګي نه وې پر موښتي.

په دې ډول سره مي ناپېژندونکي ساحلونه پرېښوده او د ځان سره مي وويل چې آيا بيا به دا ساحل ووينم؟

(۱۶)

**بلجيم**

د موريس ميترلنګ اثر:

**ترانه**

که يوه ورځ زما ځخه بې خبره پوښتنه وکړي زه به ځه ورته وايم؟

ورته ووايه چې د مرګ تر ورځي به انتظار وو.

که چيري ما ونه پېژني او بيا زما ځخه تازه پوښتني وکړي زه به ځه ورته ووايم؟

د هغې سره خبري وکړه، لکه مهربانه خور طلا ورته ورکړه، ښايي چې خپل د زړه په غم به ستا همدردي وکړي.

که يې راته وويل چې ته د کوم ځای يې و هغې ته ځه جواب ورکړم؟

جواب مه ورکوه فقط دا زما طلايي حلقه ور وسپاره.

که یې پوښتنه وکړه چې تالار ولې خالي او خاموش دئ؟

دا خلاصه دروازه او خاموشه ځراغ ور وښیه.

که یې پوښتنه وکړه چې آخرین ساعت ئې څرنګه تېر سو؟

ورته ووایه چې ما یو زړه وړونکې خندا پر ځېلو شونډو درلوده، ولې که داسې ورته ووایې له ستر ګو به ئې اوښکې راتوی سي.

(۱۷)

## پولینډ (لهستان)

د آدام منګیویچ اثر:

## دوچي سفر

د لوی او وچ سیند پر مخ دا ډول په حرکت یم لکه کښتۍ پر لانده دریاب، اربې مې د ژړو غنمو پر مخ لکه پر موجونو داسې تېرېږي، زرغونه واښه مې تر پښو لاندې آواز کوي، د وحشي بوټو او ګلانو رڼغونه اورم چې لکه دریابي مرجان زما د تګ لاره ئې بنده کړېده.

هوا ورو ورو تاریکېږي هیڅ یوه هغه ډېوه نسته چې زما لیري لار راوښیي؟ لکه هراسانه کښتۍ وان چې و آسمان ته ګوري، نابېره سر پورته کوم چې ووینم آیا د لیري اوریځې مخ پر مشرق رواني دي، یا د مغرب و لور ته درومي.

د (نیستر) رود و ما ته ستر ګک وهي او د (آکرمان) هیڅ اثر نسته ... آه څومره خاموشي ده.

د درنائي آواز اورم چې وزر وهونکې زما تر سر تېرېږي، دومره تېز تېرېږي چې خلاص وزرې عقاب هم نه سي پسې رسېدلای، په همدغه وخت کې د پروانې کرار آواز اورم چې د غوړو سره تماس کوي. د وښو په منځ کې لوی آفي ماران پېچ و تاب رهي سوي وینم، بې اختیاره وربېږدم نابېره متوجه کېږم چې په دې خاموشي کې یو آشنا آواز اورم ... آیا رشتیا دا زما منزلګاه ده چې ما غواړي؟

دا مرموز آواز مې ښه ترا غوږونه راخبروي او دا راته وایي (څه، څه!) اما همدا وچ دریاب همدغه ډول ادامه لري.

آه هیڅ اراز؟ نسته، هیڅ نښانه نسته.

(۱۸)

## امریکا (اتازوني)

د رالف والدو امرسن اثر:

## رودورا

د ثور په میاشت کې ... هغه وخت چې ساحلي بادونه په خاموشي سره تر دې مځکې پوري راځي د (رودورای) په ځنګلو کې غوړېدلې شګوفې وینم چې د ونو پر نمناکو پاڼو ئې خپل ځانونه اچولي او خپل په ښکلا ئې ځنګل له خوښۍ څخه ډک کړی ... د ارغوان د ګلونو ډکو ښاخلو خپل عکس د چینو پر پاکو اوبو اچولي او خپل په ښکلا ئې دا اوبه ځلولي دي. سور وزري مرغان خپل د وزرو د سړولو له پاره و دې چینو ته راځي او د ارغوان ګل چې د همدې مرغه له بڼو سره کامل شباهت لري، دا مرغه ورسره د عشق او محبت بول وهي.

اې رودورا! که پوهان پوښتنه در څخه وکړي چې دا ټوله ښکلا او ښایي دي بې ځایه ځي په جواب کې ورته ووایه چې که د بشر

سترګې د ليدلو له پاره پيدا سويدي نو ښايي هم حق لري چې موجوده وي.

اې د سره ګل رقيبه!

د څه له پاره دلته اوسې؟ په وارو وارو مي دا راز در څخه پوښتلی اما جواب مي نه دئ اورېدلی، هو د خپل صفا او پاک فکر په روښنايي اوس دې ته رسېدلی يم چې هغه قوت چې ژوند و ما ته بخښلی ته ئې هم د ژوند له پاره پيدا کړې.

(۱۹)

## ارجنټاين

د انريکوشه بانکس اثر:

### وړوکې ترانه

اې زما د نارنج ګله!

ما نه غوښتل چې دوست مي سې، ځکه دا نه ښايي چې ته زما دوست يې اما څه وکړم چې اوس دې دوست لرم.

زما سور ګله ژوند تر تا له مخه آرام وو، بې درده وو، تا زه د عشق په درد اخته کړم. رشتيا ته خو ګل وې نو زما و زړه ته دې څوز د څه له پاره راوړ، زما د شب بوی ګله! مګر ستا هېر دي چې زه او ته دوستان وو؟ ولي دې زه له ځانه دومره آزرده کړم؟ رشتيا وايه ته له خپلو ټولو دوستانو سره دا ډول معامله کوې؟

زما قومري کوترې!

ما فکر کاوه چې آينده به دې خوښه نه ولرم، اما ما وليدل چې ټوله دربانديې مين دي ... د ځان سره مي وويل چې آيا زما زړه تر هغو کم دئ؟

زما ښکلې پروانې!

ستا د عشق غم اخر زما زړه رامات کړ، ته نه پوهېږې چې څومره سخت غم وو، هو رشتيا ستا غم ولي دومره زور وو، چې زما زړه ئې رامات کړ؟

زما دريابي مرغۍ!

ته نه پوهېږې چې څرنګه شپه و ورځ ستا له لاسه په نالش يم، که پوهېږې او په دې خبره سه چې نزدې دئ چې له عشقه به دې لېونی سم، رشتيا وايه تا ته نه ده معلومه؟

(۲۰)

## مکسيکو

د لويس اوربينا اثر:

### تعقيب

زما ګران دلدار او محبوب لکه چې اوس زما له نيهام عشق څخه اګاه سوی دئ، چې په ځغاسته په ما پسې راځي.

آه ... ژر سه ګوتمۍ دي پر مځکه وغورځوه چې ساحلي دريابونه ځني وزېږي، که نه درياب به تېر سي خپله زرينه ږمونځ دي پر خاورو واچوه چې نيزارونه ځني جوړ سي، که له نيزاره تېر سي درې واره پرله پسې آه وکاږه چې اورونه بل کړي چې لار ئې له نظره پټه سي، که سره د دې ئې هم زما تعقيب نه پرېښود او د ښو ړغ ئې و ما ته را نزدې کېدی نو به خپل رېږدېدلي لاسونه په محبت ور وړاندې کړم او په يوه ګوښه کي به سره کښېنو.



# د سقراط تلپاته نظریات

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقیري

**شپږم فصل**

**له سفسطه پال انتیفون سره د سقراط مناظره**

د سقراط له عزت او نامه سره به دا مناسبه وي چي دلته د هغه او انتیفون تر مینځ چي څه پېښې سول ذکر سي. انتیفون نیت کړی وو چي د سقراط اورېدونکي او شاگردان ترې راکش او کم کړي، او د دې هدف له پاره په داسي وخت کي سقراط ته ورغلی چي له هغه سره خپل شاگردان او اورېدونکي ناست ول. انتیفون د هغوی په حضور کي سقراط داسي مخاطب کړ: "سقراطه! زه بارو لرم چي فیلسوفان تر نورو خلگو زیات خوشحاله وي. مگر زما په گومان ستا عقل ته نور هم ببوزلي او خوار کړی یې، ځکه ته داسي ژوند کوې چي حتی یو نوکر به هم د خپل صاحب سره نور پاته نه سي که چیري ستا غوندي سلوک ورسره وسي. ستا خورک او څښښنگ لږ دي، ستا جامې خواري دي یوه جوړه کالي په ژمي او دوبي کي اغوندې - ته لڅي پښې گرځې، او د هغو شیانو په مقابل کي مزد نه غواړې چي باید غوښتي دي وای. ځکه کله چي یو څوک پیسې پیدا کړي، هغه کولای سي چي ارام او هوسا ژوند وکړي. اوس نو، که چیري ستا شاگردان، د نورو مسلکونو د زده کوونکو په څېر چي تل د خپل استاد لاره تعیقبوي، ستا پر گام باندي پل کښېږدي، مسلمه به دا وي چي تا به دوی ته بل هیڅ هم نه وي ورښودلي مگر دا چي څرنگه ځانونه خوار او ببوزلي کړي".

سقراط هغه ته داسي جواب ورکی: "انتیفونه! ستا په گومان چي زه یو داسي ښوزلي او خوار ژوند کوم چي ته به مرگ ته ترجیح ورکړې نه دا چي زما په شان ژوند وکې. هغه څه شی دئ چي ته ئې زما په ژوندانه کي دونه گران او حیرانوونکی گڼې؟ ته ما په دې گرم بولې چي ولي معاش نه اخلم. ایا هغه خلگ چي مزد اخلي، هغوی باید هغه څه و نه کړي چي ژمنه ئې کوي؟ مگر زه، چي اصلاً مزد نه اخلم، یوازي د هغو خلگو سره ناسته او ولاړه کوم چي زما په فکر مناسب کسان دي. بل خوا، ته زما له خورک او څښنگ څخه هم کرکه لرې. ایا ستا کرکه زما له خورک او څښاک څخه د دې له پاره ده چي زما خواړه ستا په شان ښه او گټور نه دي، که ستا د غذا په پرتله کم او ارزانه دي، او که فقط ته داسي فکر کوې چي ستا خورک او څښنگ تر ما ښه دي؟ گوره انتیفونه، کله چي د یوه کس کوم خواړه خوښ وي، هغه اضافه مصالحه ته اړتیا نه لري، او دغه راز کله چي د یوه سړي د څښنگ کوم شی خوښ وي، هغه د بل ډول شربت هیله او اشتها نه لري. زما د جامو په اړوند ستا انتقاد او اعتراض له سره په خطا کي دئ. څکه ایا ته نه پوهېږې، اې انتیفونه! چي موږ یوازي په دې خاطر خپلې جامې بدلوو چي د گرم او یخ موسم سره سم وي، او ایا بوټونه د آرام تگ په مقصد نه په پښو کوو؟ اوس نو، دا راته ووایه، انتیفونه، چي ایا کله دي زه لیدلی یم چي سړو او یا تودو له بهر وتلو څخه راگرځولی یم؟ ایا کله دي زه د دوبي په گرمۍ کي د یخ سیوری لاندي لیدلی یم؟ او که څه هم زه لڅي پښې گرځم، مگر ایا ته ما نه وینې چي هر ځای چي مي زړه وغواړي هلته ځمه؟ ایا ته نه پوهېږې چي هلته داسي انسانان هم سته چي مزاج او طبیعت ئې نازک او لطیف وي، مگر د تمرین او دوامداره کسرت په برکت د خپل فطرت دغه کمزوري تلافي کوي، او په اوږدې مودې کي تر هغو خلگو غښتلي او صبور سي چي په طبیعي توگه قوي جوړښت لري، خو د دوامداره غفلت په وجه ئې خپل تفوق او امتیاز له لاسه ورکړی وي؟ نو بنا، ایا ته فکر نه کوې چي زه، کوم چي ټول عمر مي ځان داسي عیار او تربیه کړی دئ څو هر راز زحمتونه په صبر سره وگالم، تر تا، چي هیڅکله دي په دې باره کي سوچ هم نه دئ کړی، له هر راز شرایطو سره ښه ځان عیارولای سم؟ که چیري زه د ښو او خوندورو خواړو سره خاصه علاقه نه لرم، که چیري زه کم خوب کوم، که چیري زه په بدنامو عشقونو باندي مشهور نه یم، د دې سبب دا دئ چي زه خپل وخت په داسي ښادو او نېکو شیانو باندي تېروم چي د هغوی لذت نه یوازي د خوشحالۍ پر مهال زما سره وي، بلکي مدام له ما سره مل او ملگری وي. همدا راز، ته ښه پوهېږې کله چي څوک وگوري چي کارونه او بزنس ئې پر سمه روان نه دئ، هغه عموماً خوشحاله نه ښکاري. خو بر عکس هغه څوک چي فکر کوي چي حالات ئې سم روان دي - که چیري دا زراعت، تجارت، او یا بل هر کار کي وي - د هغه دماغ او فکر تل آرام وي. اوس نو، ستا په باور ایا هلته بل داسي شی سته چي له هغه خوشحال احساس سره سیالي وکړای سي چي هغه څوک ئې احساسوي چي هره ورځ په ځان کي د تقوا د حاصلولو په غرض هڅه کوي، او همدا شان د ژوند په جریان کي د ښه او نېکو خلگو اشنایي او یاري گټي؟ اوس نو، که چیري موږ خپلو یارانو او وطن ته د خدمت کولو اراده کړې وي، ایا زما غوندي یو کس به د دې وظیفې له پاره مناسب وي او که یو داسي څوک چي د ژوندانه طریقه ئې تا ته جالبه وي؟ که چیري جنگي شرایط راسي او د وسلو د اخیستلو وخت راورسېږي، نو ایا زموږ له دوو څخه به کوم عالي عسکر وي، هغه څوک چي باید تل خوندور او رنگارنگ خواړه غواړي او که هغه کس چي هر څه په لاس ورځي په هغه گوزران کوي؟ که چیري محاصره او کلابند سوو، څوک به ډېر زیات

مقاومت وکړي، ایا هغه څوک چي پرته له لوکس، آرام، او اسرافي ژوند څخه ګوزاره نه سي کولای، او که هغه څوک چي په هر ډول شرایطو کي ژوند کولای سي؟

انتیفونه! سړی فکر کوي چي ستا په ګومان خوشحالي یوازي په ښه خورک، څښښک او تجملي ژوند کي تر لاسه کېدلای سي. مګر زما په نظر الهي کمال دا دئ چي انسان اصلاً هیڅ ضرورت او تمه و نه لري، او بل خوا، زه باور لرم چي خدای ته نژدې کېدو لاره ضرورت او تمه حداقل ته رسول دي. اوس نو، لکه څنګه چي هلته هیڅ شی تر خدای پورته او عالي نسته، نو بنا هره هغه لاره چي الهي ذات ته انسان نژدې کاندي هغه تر ټولو عالي او کټوره لاره ده".

بل وخت بیا انتیفون سقراط داسي مخاطب کی: "سقراطه! زه اعتراف کوم چي ته یو صادق او نېک سړی یې؛ خو دا هم ثابته ده چي ته یا په بېخي لږ څه پوهېږې او یا خو اصلاً په هیڅ هم نه پوهېږې. بلخوا، ته د خپل تدریس په مقابل کي هیڅ مزد او معاش نه اخلې. مګر زه باور لرم چي ته به خپل کور او اسباب پرته له څه پیسو هسي وړیا ور نه کړې، څکه ته په دې باور لرې چي هغوی څه ارزښت او قیمت لري او زما ګومان دا هم دئ چي ته به همدا شیان د هغوی د ارزښت او قیمت څخه ارزان ور نه کړې. اوس نو، که چیري ته خپل تدریس او پوهي ته په څه ارزښت قایل وای، تا ته به د هغوی د ارزښت او قیمت په اندازه پیسي در کړه سوي وای. مګر دلته هم تا یو خل بیا خان صادق او رشتین ثابت کړ، څکه ته پوهېږې چي ته په بېخي کم شي پوهېږې او ستا علم او پوه هیڅ ارزښت نه لري، او په عین زمان کي ته نه غواړې چي د حرص او بدنیتی په خاطر یوکس وغولوې او یو داسي شی باندي خرڅ کړې چي په خرڅولو نه ارزي".

سقراط هغه ته دا شان جواب ووایه: "د فیلسوفانو د عقایدو او ښایست تر مینځ ډېر زیات مشابهت او ورته والی سته، معنا دا چي په یوه کي د ستایلو څه په هغه بل کي هم د تمجید وړ دي، او دغه راز دواړه (معنا فیلسوف او ښکلا) د یوه خطر او شرارت سره مخامخ دي. څکه کله چي یوه ښځه خپله ښکلا د پیسو په مقابل کي پلوري، موږ سمدستي هغې ته فاحشه وایو. مګر که چیري یوه ښځه د دې احساس وکړي چي پر یو باعزته او کمالداره سړي باندي ګرانه ده او مینه ورسره لري، او که چیري د همدې کس سره ملګرتیا وکړي، موږ وایو چي د ښه نامه او اخلاقو ښځه ده. همدا خبره د فیلسوفانو پر عقایدو باندي هم صدق او دلالت کوي. په بل عبارت، هغه فیلسوفان چي خپل عقاید خرڅوي، هغوی ته موږ سفسطه پال وایو، عیناً لکه بازاري ښځي چي خپل ښایست خرڅوي. خو که چیري یو فیلسوف د ښې سِکې څوان وګوري، او د همدې څوان د ملګرتیا د لاسته راوړلو له پاره هغه ته څه ور زده کړي چي فیلسوف په پوهېږي، موږ دا راز خلګو ته ښه، نېک، او متقي سیټزن (ښاریان) وایو. اوس نو، لکه څرنګه چي د څینو کسانو اصیل او ښکلي اسان خوښېږي، پر چا باندي ښایسته سپي ګران وي، او د څینو بیا په مرغانو ساعت تېرېږي. زما له پاره ، زما لویه خوشحالي دا ده چي د متقي او پاکو یارانو سره یم. زه هغوی ته ټول هغه ښه شیان ور زده کوم، کوم چي زه په پوهېږم، او د هغو نورو کسانو سره ئې معرفي او اشنا کوم چي ګومان کوم کمال ته د رسېدو په لاره کي به ورسره کومک وکړي. موږ ټوله د حکمت او علم له هغې چینې څخه استفاده کوو چي زموږ لرغونو حکیمانو او عالمانو موږ ته په میراث را پرېښې ده. موږ د هغوی آثار ګورو او کله چي موږ یو عالي شی پکښي پیدا کړو، موږ هغوی ته توجه کوو. لنډه دا چي موږ په دې باور لرو چي کله موږ د یو بل سره د میني کولو هنر زده کړو، موږ واقعاً پرمختګ کړی دئ". همدا د سقراط جواب وو. کله چي ما سقراط د دې راز وینا د کولو پر

مهال ولید، زما په ګومان دی خورا خوښ او خوشحاله بریښېده، او رشتیا خبره دا ده چې سقراط په حقیقت هم خپل اوربدونکي د تقوا سره عشق ته لمسول.

یو بل ځل، انتیفون له سقراط څخه وپوښتل چې ولې په سیاسي چارو کې برخه نه اخلې، حال دا چې سقراط باور لري چې نور سیاستوال ښه او اصلاح کولای سي؟ سقراط دا راز جواب ورکړ: "ایا زه به د دولت له پاره هله ښه خدمت وکړای سم چې دولتي مامور سم، او زما ټول وخت د یوې معیني وظیفې له پاره مصرف سي، او که هله چې زه د جمهوریت د هر سیټزن (ښاري) د اصلاح چانس ولرم او وکړای سم چې جمهوریت ته داسي سیټزن (ښاریان) وراندي کم چې د جمهوریت له پاره د خدمت کولو جوګه وي؟"

**اووم فصل**

**سقراط څه ډول انسانان له تظاهر څخه منع کول؟**

راځئ وګورو چې سقراط خپل یاران د تظاهر څخه څرنګه راګرځول، او په عین زمان کې ئې هغوی تقوا ته په زوره او جبر نه راکشول. هغه مدام ویل چې د ځان اصلاح او ښه کول جلال او ښه شهرت ته د رسېدو له پاره تر ټولو لنډه لاره ده، مګر په دې شرط چې تظاهر پکښې و نه سي. سقراط د خپل ثبوت له پاره لاندي مثال وړاندي کاوه. هغه ویل: "راځئ داسي فرض کړو چې هر کس د موسیقۍ ښه هنرمن کېدلای سي، که څه هم په واقعیت کې به داسي نه وي. اوس نو، دغه کس باید کومه لاره تعقیبه کړي؟ هغه مجبوره دئ چې په هر څه کې د موسیقۍ د سترو استادانو تقلید وکړي. هغه مجبوره دئ چې د هغوی په شان د موسیقي ښه الات ولري. د موسیقۍ د سترو استادانو غوندي هغه هم باید زیات شاګردان ولري، او هر ځای چې همدا شاګردان ورسره ملګري وي باید تل د خپل استاد تعریف او تمجید وکړي. مګر هغه دغه راز مجبوره دئ چې په عام محضر کې هیڅکله هم د سندرو ویلو هڅه و نه کړي، ځکه نه یوازي به ټول عالم ته سمدستي د هغه ناپوهي څرګنده سي، بلکي د هغه حماقت او ګستاخي به هم رابرسېره سي. ایا دا به د هغه له پاره یوه لویه رسوایي نه وي که چیري هغه خپل جایداد د خپل شهرت د ځرابولو له پاره مصرف کړي؟ همدا راز، که چیري یو څوک د ستر جنرال او یا ښه ماښو ساتې و باټ ولري، البته په واقعیت کي له دغو دوارو څخه یو هنر هم نه لري، ایا د هغه حالات به څرنګه وي؟ که چیري هغه و نه کړای سي چې نور خلګ د خپلو قابلیتونو په اړه قانع کړي، ایا دا به هغه غمجن نه کړي؟ بلخوا، که چیري همدا کس خلګ په چل او ول قانع کړي چې د مشر توب وړتیا لري، ایا هغه به لا غمجن نه وي؟ ځکه که چیري ده ته د یوې بېړۍ د اداره کولو چاري وسپارل سي او یا د یوه پوځ قومنداني ورکړه سي، هغه به په دوارو مقامونو کې ځان ډېر په عذاب احساسوي او حتی ښایي د خپلو ښو یارانو د بربادۍ سبب هم وګرځي. دا خطرناکه خبره ده که چیري مونږ په شتمنتوب، زړه ورتوب او یا غښتلتوب باندي تظاهر وکړو مګر په حقیقت کې هغه شان و نه واوسو. ځکه همدا تظاهر ښایي مونږ داسي ځای استخدام کړي چې زمونږ تر قابلیت لوړ وي، او که چیري مونږ په خپله وظیفه کې ناکامه سو، زمونږ د ناکامۍ له پاره هیڅ توجیه نسته. که چیري له خپلو ګاونډیانو څخه په چل او ول نغدي پیسې او یا نور شیان ترلاسه کړو، ایا دا به ستر ناجایز کار نه وي؟ دا به تر هغه لا ناجایز کار وي چې یو نالایق او بې کفایته کس نړیوال په دې قانع کړي چې ګواکې هغه کولای سي چې یو جمهوریت اداره او چلولای سي".

په دې شان استدلال او ډیالوګ به سقراط په خپلو یارانو او شاګردانو کې د تظاهر څخه د ځان ژغورلو احساس غښتلی کاوه.

د لومړي کتاب پای

ليکوالان: خالد اقبال ياسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آريا

# نوبل جايزه وړونکي اديبان

## هنريک شنکائي وچ

(Henryk Sienkiewicz)

(۵ مى۱۸۴۶م – ۱۵ نومبر ۱۹۱۶م)

**(اتمه برخه)**

د پولينډ دغه ناول نګار او کيسه ليکونکي ته په ۱۹۰۵م کي نوبل ادبي جايزه ورکړه سوه. هنريک شنکائي وچ په نړيواله کچه ډېر مشهور ناولونه لري. د دې ناولونو له جملې څخه ئې يو ناول (Quo Vadis)د نړۍ په بېلابېلو ژبو ترجمه سوی دئ او څو پلا فلم سوی هم دئ. نوموړي د نړۍ په اړه د يوه سخت دريځه کاتوليک غوندي نظر درلود. د هغه دا نظر د نوموړي ليکني هم اغېزمني کړي دي. د هغه اثار د نړۍ تر پنځوسو زياتو ژبو ته ژباړل سوي دي.



هنريک شنکائي وچ د روسيې تر ولکې لاندي د پولينډ د(Wola Okrzejska) نومي کلي

په یوه خوشحاله کورنۍ کې زېږېدلی دئ. کله چې ئې د کورنۍ اقتصادي حالت خراب سو، نو خپل شخصي جایداد ئې خرڅ کی او وارسا ته کډه سول. د وارسا په جمنازیوم کې تر زده کړې وروسته هغه په پولش (Polish) پوهنتون کې زده کړه پیل کړه. په دې ځای کې نوموړي لومړی طب او حقوق وویل او بیا ئې د تاریخ او ادب مطالعه شروع کړه. هغه لا محصل وو، چې په اخبارونو کې ئې کالمونه چاپ سول. لومړنۍ تاریخي کیسه ئې د سر والټر سکاټ (Sir Walter Scott) او الیګزنډر ډوما (Alexandre Duma) تر تاثر لاندې وکښه. اوس د دې کیسې کومه مسوده په لاس کې نسته. د نونسمې پېړۍ په اوومه لیسزه کې هغه د مالي تنګلاسۍ له امله پوهنتون ایله کی، د ژورنالیست په توګه ئې کار شروع کړ او د دې ترڅنګ ئې د لنډو کیسو او ناولونو لیکلو ته هم دوام ورکی. په ۱۸۷۲م کې د هغه لومړی ناول (Ma Marne) چاپ سو. دغه ناول د هغه د محصلۍ د دوران عکاسي ده. په ۱۸۷۴م کې هغه د (Niwa) په نامه یوه پنځلس ورځنۍ رساله را وایسته. د دې رسالې د مسئول مدیر چارې خپله هنریک پر غاړه درلودې.

هیلینا موفیسکا[1] ((Halena Mofjeska)) غوښتل چې له ځینو دوستانو سره په کلیفورنیا کې ژوند وکړي، هنریک شنکائي وچ په ۱۸۷٦م کې د همدې مقصد له پاره امریکا ته ولاړی، تر څو هلته د دې پروګرام ترتیبات ونیسي. د همدې سفر پر مهال هغه په (Gazeta Polska) نومې اخبار کې د خپلو لیکونو په چاپولو پیل وکی. دا سفر د هغه د ځینو کیسو د لیکلو موجب وګرځېدی. په دې کیسو کې یوه هم (Latarnik) نومې کیسه وه، چې په ۱۸۸۲م کې چاپ سوه. په ۱۸۷۹م کې هنریک بیرته وارسا ته راغلی او د (Slowo) نومې اخبار مسئول مدیر سو. د هغه لومړی ناول همدلته چاپ سو. تر دې وروسته نوموړي د (Mianowski) بنسټ د غړي او د ادبي بنسټ (Laterary Foundation) د مشر په توګه کار وکی.

شنکائي وچ د والټر سکاټ او فرانسوي تاریخي ناولو تر اغېز لاندې د تاریخي ناولونو د یوې ټرایلوجۍ په لیکلو هم پیل وکی. د دې لړۍ لومړی کتاب (With Fire and Sword) په ۱۸۸۴م کې چاپ سو. نور دوه ناولونه(The Deluge) او (Pan Michael) ئې په ترتیب سره په ۱۸۸۴م او ۱۸۸٦م کې چاپ سول. د نوموړي دغه کار ډېر محتاطه تحقیق وو. شنکائي وچ د رنګارنګه کرکټرونو د مکالمې په جوړولو کې خورا مهارت درلود. همدا ټکی د نوموړي د نړیوال شهرت یو لامل هم دئ.

د پورتنۍ ټرایلوجۍ لومړی ناول (With Fire and Sword) له ۱٦۴۸م څخه بیا د اوولسمې پېړۍ تر اواخرو پوري د دریم کنګ جان تر مهاله پر پېښو راڅرخي. په دې ناول کې شنکائي وچ د الیګزنډر ډوما له تخنیک څخه کار اخیستی دئ، ځکه نوموړي له یوې خوا د ناول ژبه ور رنګینه کړې ده او بل ئې د حب الوطنۍ درس هم پکښې ورکړی دئ. دغه ناول د هغو جګړو بیان کوي، چې

[1] د پولینډ د ډرامو ډېره مشهوره لوبغاړې.

پولینډیانو د خپل هیواد د دفاع له پاره کړي دي. د ناول په لومړۍ برخه کي د پولینډ او یوکراین جنګ او په دوهمه برخه کي پر پولینډ باندي د سویډن د حملې حال راغلی دئ. دریمه برخه ئې د پولینډ او ترکیې پر جنګ پای ته رسیږي، په ظاهره دا یو کلاسیک واقعیتي ناول ښکاري. په دې ناول کي موږ یو نه ماتېدونکی اتل، د ډوئیل د جنګونو منظر کشي، ناپایه ملګریتوب او د اتلانو مرګونه لیدلای سو. په دې ناولونو کي شنکائي وچ د خپل قوم تېر برم او عظمت ښکاره کوي. د دې ناولونو د بیان کمال په دې کي دئ، چي لوستونکی ځان د ناول له افسانوي اتلانو سره ملګری ګڼي او د پولینډ پر بیا را پورته کېدو ئې باور لا پخېږي. د دوهم نړیوال جنګ پر مهال چي د آزادۍ د لاري جنګیالیو خپل نومونه پټول، نو د دې ټرایلوجۍ نومونه به ئې ځان ته غوره کول.

شنکائي وچ د خپل (Que Vadis) نومي ناول د تیاري له پاره په افریقا او ایټالیا کي استوګنه غوره کړه. د دغه ناول کیسه د روم د یوه باچا نیرو (Neru) په زمانه کي د یوه عیسوي د مرګ پر سزا راڅرخي. سره له دې چي دغه ناول د پخوانۍ زمانې پر پېښو ولاړ دئ، خو بیا ئې هم د هغو پولینډیانو د زړه ږغ پورته کی، چي د استبداد پر ضد په مبارزه بوخت ول. د دې ناول د هوډ او امید له پیغام څخه ډکه کیسه ډېره مشهوره سوه. په ناول کي د روم د شاهي کورنۍ یو ډېر بااعتباره شخص ونیسئیس (Vinicius) پر یوه عیسوۍ نجلۍ لګیا (Lygia) باندي مینېږي. نیرو یو بدخویه، جابر واکمن دئ، نوموړی کرکټر د روم د سلطنت د زوال د باعث په توګه وړاندي کېږي. په دې ناول کي دوه حقیقي تاریخي کرکټرونه راخیستل سوي دي، چي یو پکښې پټرونیس (Petronius) دئ. دا سړی خورا ښه جمالیاتي تیورسن وي. په ناول کي دوهم حقیقي تاریخي کرکټر د سینیکا (Seneeca) دئ، چي د نیرو سرسخته مخالف وي. کله چي پټرونیس له نیرو سره ویني نو هغه ته وایي: "ټوله نړۍ ستا څخه رپېږي خو ته د خپلو غلامانو څخه رپېږې. په علت ئې هم ښه پوهېږې، ځکه هره لحظه ستا د جبر او استبداد په وړاندي یو خونړی جنګ پیل کېدلای سي. سره له دې چي ته یو آمر یې خو بیا هم په دې باوري نه یې، چي سبا به ته نه مرې او له دې فاني دنیا څخه به نه ځې. که څه هم ته ځوان یې، خو ښایي سبا ستا مرګ حتمي سي". نوموړی ناول له هغو لومړنیو ناولو څخه دئ، چي فلم ته واوښتل. په شلمه پېړۍ کي پر دې ناول باندي په فرانسوي او ایټالوي ژبو هم فلمونه جوړ سول. په ۲۰۰۱م کال کي دوهم پاپ جان پال د دې ناول د بیا فلم کولو له پاره مالي مرسته وکړه او د فلم کولو له پاره ئې په تیونس، پولینډ او فرانس کي کار وسو.

په ۱۹۰۰م کي پولینډي حکومت نوموړي ته د هغو خدمتونو له کبله یوه ټوټه مځکه ورکړه، چي هغه د پولینډي ادب په برخه کي کړي ول. په ۱۹۰۰م کي د شنکائي وچ وروستی مهم ناول (Krzyzacy) چاپ سو. د دې ناول انګلیسي ترجمه (The Teutonic

(Knights تر سرليک لاندي چاپ سوه. د دې ناول پېښې د منځنۍ پېړۍ پر پولينډ راڅرخي. که څه هم دا يو تاريخي ناول دئ، خو بيا هم په خورا بليغ ډول له معاصر پولينډ سره د الماني حکومت چلند ته اشارې پکښې سوي دي.

په ۱۹۱۱م کي د هغه يو بل ناول د In) (Desert and Wilderness په نامه چاپ سو. دا ناول د کوچنيانو له پاره کښل سوی دئ. دغه ناول د افريقا په دښتو او شنو ځکو کي د مهدي سوډاني د بغاوت پر هغو پېښو راگرځي، چي نوموړي د نيواکگر نظام پر خلاف کړی وو او په نتيجه کي ئې د خرطوم ښار نيولی وو. نوموړی ناول له هغو جزئياتو څخه ډک دئ، چي په ۱۸۹۰م کي شنکائي وچ د افريقا د سفر پر مهال ليدلي ول. په ۱۹۰۷م کي هغه يو بل کتاب وکيښ. په دې کتاب کي هغه د پولينډ په اړه د پروشيايي حکومت پر ظالمانه پاليسيو باندي نقد کړی دئ.

کله چي لومړی نړيوال جنگ ونښت، نو شنکائي وچ سويټزرلنډ ته ولاړی او هلته د سويس ريليف د هغي کمېټې غړی سو، چي د پولينډ په جنگ ځپلو سيمو کي ئې کار کاوه. نوموړی په ۱۹۱٦م کي په سويټزرلينډ کي مړ سو او اته کاله وروسته ئې خاوري سوی جسد پولينډ ته يووړل سو.

نوبل جايزه گټونکي ليکوال (Gzeslav Miloz) په خپل (The History of Polish Literature) نومي کتاب کي د شنکائي وچ په اړه داسي کښلي دي: "د شنکائي وچ له پاره د مقام ټاکل يو لوی کار دئ، ځکه د نوموړي په آثارو کي د اسلوب د خورا ښو ښېگڼو سره، سره داسي خامۍ او نيمگړتياوي هم ليدل کېږي، چي هغه په ډېره اسانۍ سره د لومړي صف له ليکوالو څخه ايستلای سي" شنکائي وچ د نوبل جايزې د گټلو په اړه خپل نظر داسي څرگند کړ: "داسي ويل کېږي، چي پولينډ ژوند له لاسه ورکړی دئ او غلام سوی دئ، خو دا (نوبل جايزه) د دې ثبوت ده، چي (پولينډ) ژوندی دئ".

سره له دې چي د شنکائي وچ ناولونه له فلسفي عمق څخه خالي دي خو بيا هم نوموړی د لومړي کتار په ناول ليکونکو کي شمېرل کېږي. د جديديت د لومړي پړاو نامتو کره کتونکي (Stanid Brzozowski) په ۱۹۰۳م کي پر شنکائي وچ يوه اوږده مقاله چاپ کړه او پر هغه ئې سختي نيوکي وکړې. که څه هم ځيني نور نقادان هم په دې نظر دي، چي شنکائي وچ بايد د دوهمي درجې د ليکوالو په لومړي کتار کي حساب کړه سي خو هيڅ نقاد تر دې دمه د هغه د بيان له جادو څخه نټه نه ده کړې. د شنکائي وچ مشهور تاريخي ناول (Quo Vadis)په ۱۸۹٦م کي چاپ سو. د دغه لاتيني ناول د نامه معنا "ته چيري ځې؟" ده. نوموړي د خپل ناول له پاره دغه نوم د انجيل شريف د لرغوني عهد نامې د (John ۱۳:۳٦) آيت پر اساس په کنايي ډول کار کړی دئ. د هغه دغه ناول ډېر خوښ کړه سو او په څو ژبو ترجمه سو. نوموړی ناول په ۱۹۰۱م کي د ډرامې، په ۱۹۰۹م کي د موزيکال ډرامې، په ۱۹۱۲م، ۱۹۲۴م، ۱۹۵۱م او ۱۹۸۵کي په جلا، جلا ډول په فلمي بڼه وړاندي سو.

# اغېزه ناکه مذاکره

ليکوال: کين لاسن، ايم. اې، اي ډي. ايم
ژباړه: **سعيد لودين/کاناډا**
(شپږمه برخه)

**خبرو ته امادګي:**

تر کارخانګي کولو وروسته دې ته اړتيا لرئ چي غونډه څنګه په ښه توګه پيل کړئ.

د هري غونډي د پيلولو له پاره عموماً دوه ډوله تاکتيکونه کارول کېږي:

**۱. ستونزمن موضوعات لومړی څېړل:**

دا طريقه يوه ډېره سرابنه طريقه ده چي غونډه په پيل کړه سي. ته و غونډي ته ورځې او وار له واره هر څه روښانه کوې او پر لويو موضوعاتو باندي بحث پيلوې.

**ګټي ئې:**

د مذاکرې جريان لنډېږي: بېکارو خبرو ته ضرورت نه وي او مهمي مسئلې په صادقانه ډول د بحث له پاره رامخته کېږي. دا مو وخت له ضايع کيدلو څخه ژغوري. که مسئلې ډېري ستونزمني وي او جوړي ته د رسېدلو چانس نه وي نو پر کوچنيو او بېکارو موضوعاتو جوړېدل کومه ګټه نه لري. دا کار مقابل لور ته وخت هم نه ورکوي چي ستاسي د ګټو او منابعو په اړه معلومات راغونډ کړي بلکي تاسي به ئې په حيرانۍ کي واچوئ. د غونډي په سرابنه توګه پړانيستنه به په هغه صورت کي نوره زياته ګټمنه وي که د مقابل لور د مذاکرې طريقه هم همداسي سرابنه وي.

**زيان ئې:**

دا له خطره ډکه طريقه ده څکه د ټکرونو امکان پکښي کي زيات دئ. دا به مقابل لور په دفاعي حالت کي واچوي او د موضوعاتو په اړه به صرف خپل نظرونه وړاندي کوي او بس. دا تاکتيک ښايي مقابل لور د مذاکرې څخه زړه توری کړي څکه پيل ئې په سرابنه توګه سوی دئ او د مذاکرې اينده په ښه نه ورته ايسي.

**۲. لومړی کوچني موضوعات څېړل:**

يوه تجربه سوې او ګټوره لار دا ده چي د هوکړې د تر لاسه کولو له پاره کار وسي او د مذاکرې په جريان کي هم د همدغسي نورو هوکړو د تر لاسه کولو هڅي سوي وي. دا به داسي يو احساس پيدا کړي او د دې ښکارندوی به وي چي پر ټولو موضوعاتو باندي جوړ جاړی کېدلای سي. برعکس که يوه غونډه د (يا او نه) په جوابونو شروع سي نو جوړجاړي ته رسېدل به هم پکښي ډېر مشکل وي.

**ګټي يې:**

لکه څنګه چې مذاکره يو جريان دئ نه يوه نتيجه، نو غونډي ته ځير کېدل، دوه اړخيزه باور پيدا کول او د همکارۍ فضا پيدا کول هم تل يو ښه پيل بلل سوی دئ. د دې معنا دا ده چې تاسي خپل حريف، د مذاکرې طريقه ئې او هغه جوړه چې دی (حريف) ئې غواړي ځان ته معلومه کړې ده.

**زيانونه ئې:**

ضروري نه ده چې په لړ سرابتوب پيل سوې غونډه دې پر لويو موضوعاتو جوړجاړی له ځانه سره ولري. هوښيار اوسه او دا يقيني کړه چې ته و ناکامه کېدلو ته په قطار کي نه يې ولاړ. پستې او د ښه پيغام درلودونکي خبرې به ستاسي حريف ته دا اسانه کړي چې وروسته لويي غوښتني په ډېر اسانۍ درته رامخته کړي. و دې ته دي هم پام وي چې ستاسي حريف به پوست برخورد او خوږې خبري ښايي د معلوماتو د راټولول له پاره کاروي چې ځان ته معلومه کړي چې غونډه په څه ډول پيل کړي.

**مذاکره پيلول:**

دا په تاسي پوري اړه لري چې مذاکره څنګه پيلوی؟ خو ستا له خوا لومړی د غونډې پيلول به تا ته تل ګټه رسولې وي. عيناً لکه د ټينس بازي چې ده. دا به پر مقابل لور وي چې ستا د پيل و خبرو ته څنګه جواب وايي. يو څو غير مهمي او بې کاره نظريې د مبلينو د ګنج په څېر پر خپل حريف د دې له پاره وکاروئ چې د هغه عکس العمل مو ځان ته معلوم کړی وي. دا کار به و تاسي ته په ښه توګه څرګنده کړي چې د هغه حساسي نکتې کومي او چيري دي.

**مختلف رواجونه:**

په نړۍ کي هيوادونه ځان ته مخلتف رواجونه لري او هر هيواد بيا په خپل ځان کي سمتي بېلوالی لري او ځيني وخت خولا حتی په کوچنيو ټولنو کي دا بېلوالی موجود وي. نو په همدې خاطر دا به هوښياري نه وي چې د يوې غونډې ته په دې فکر ولاړ سی چې د مقابل لور اخلاق، معيار، اوليتونه او نظريې هم ستاسي په څېر دي. په دې اړه معلومات نه درلودل به تاسي مغروره او بې تفاوته وايسوي او ډېر ژر به د اړيکو د خرابوالي باعث وګرځي.

**۱. د وخت اصليت:**

په نړۍ کي د وخت په اړه نظرې ډېري مختلفي او يو له بلي سره بېلي دي. د مثال په ډول: ډېر اسيايي رواجونه په دې عقيده دي چې وخت بيرته راګرځي. وخت د ارغړۍ په څېر ګڼي. دا د هغوی له دينونو څخه سرچينه اخلي لکه هندويزم او بوديزم چې د پيدا کېدلو، مړ کېدلو او بيرته پيدا کېدلو نظريې پکښې پياوړې دي. غربي کلتورونه وخت ته د يوې ليکي په څېر ګوري يعني د يوې نکتې پر لور روان يې.

**۲. د وخت موده:**

د وخت پر اصليت سربيره، اکثره کلتورونه په دې کي سره بېل دي او جلا جلا نظريې لري چې ډېر وخت يعني څونه وخت؟ دا په هغه وخت کي درته معلومېږي چې ستاسي حريف ستاسي څخه د فيصلې کولو له

پاره وخت وغواړي. د وخت اوږدوالی اکثره وخت د کلتورونو په زوړوالي پوري اړه لري. د استرالیا د ډېر وخت او د هندوستان د ډېر وخت په منځ کي ډېر ښکاره توپیر موجود دئ.

**۳. صلاحیت:**

ځیني مذاکره کوونکي د خپلو کمپنیانو او ملکونو سفیران وي. دا یعني دوی به د زړه غواړي چي و جوړي ته درسره ورسېږي خو دوی باید و لوړو مقاماتو ته د اخیري فیصلې له پاره مراجعه وکړي. دا ښایي دوی بې واکه وایسوي خو، دا سخته او څو پړاویزه طریقه ښایي د دوی اصول وي.

۴. ځیني کلتورونه له نورو سره د اړیکو و ټینګولو ته تر دې ډېر ارزښت ورکوي چي ستا بحث څونه پر منطقو ولاړ او له ثبوتونو سره مل دئ. په لنډه توګه، د دې تر مخه چي معامله مو شروع سي دوی غواړي چي و ځان ته دا معلومه کړي چي آیا ته په دې ارزې چي معامله درسره وکړي. اکثره اسیایي کلتورونه د اجتماعي پروتوکولونو له پاره ډېر سخت اخلاقي او رویه وي قوانین لري او د دغو قوانینو په نه مراعتولو به مذاکره بده اغېزمنه سوې وي.

۵. ځیني کلتورونه داسي هم سته چي د یوه ډېر کنترول لرونکي ګروپ په توګه کار کوي او پر اجتماعي پروتوکولونو او مذاکرو ئې درنه اغېزه کړې وي. دا کېدای سي چي د هغو کلتورونو سره په ټکر کي واقع سي چي له دغو بندیزونو څخه آزاد وي او دا فکر کوي چي ولي باید د نورو خلکو خواهشات او نظریې د مذاکرې پر بهیر اغېزه وښندي.

**۶. جنس، عمر او لومړیتوب:**

ډېری کلتورونه دې درو موضوعاتو ته په مختلفو نظرونو ګوري. په غرب کي موږ ته ډېره سخته ده چي هر څه ساده وګڼو او موږ ته د جنس، قوم او عمر تر منځ فرق کول ډېر لوی تبعیض ښکاري. خو پر بل اړخ ځیني کلتورونه په ډېر طبعي ډول خپلو مشرانو ته مراجعه کوي او هغه په دې چي هغوی ته ئې عزت ورکړی وي. ښځي او سړي ښایئ مساوي نه وي خو هر یو و ځان ته خپل مقام لري. مشرتوب پالل یعني د کشرانو یا کښته رتبو لرونکو له پاره لږ مسئولیت.

د مختلفو رواجونو، هیوادونو او موضوعاتو تر څنګ ډېر داسي نور عوامل هم سته چي څوک تر پزي پوري راولي، خو مهمه خبره چي باید تل مو په یاد وي هغه دا ده چي په نړۍ کي دوه هیوادونه په یوه ډول نه وي. که غواړئ چي سوء تفاهم نه وي پېښ سوی او په موضوعاتو کي مو خلل راکم سوی وي نو لاندي پنځه طریقې پر کار واچوئ:

**۱. خپل کورنی کار کول:**

د هغه ځای په اړه څېړنه وکړه چي ورځې. ځان ته ئې رواجونه، د سلام طریقې، د مذاکرې طریقې، د ورځني ژوند حالت ئې او ستاسي د حریف رول معلوم کړئ. سربېره پر دې اجتماعي قوانین، د مشرانو رول او په نورو داسي ضروري اړخونو ئې ځان خبر کړئ. دا کار به تاسي له خندونو او په دامونو کي له لوېدلو څخه وژغوري. د هغه څه په اړه څېړنه کول چي د موضوع سره مستقیم تړاو و نه لري هم بې ګټې نه وي په خاصه توګه د مذهب او سیاست په اړه ئې.

**۲. ژبه زده کول:**

هیڅوک په یوه ټولنه کې دونه دلچسپه نه ایسي لکه یو سیاح او نوی څوک چې وي، خصوصاً چې بیا د انګلیسي ژبې هیواد څخه وي او د هغه ځای ژبه ئې یو څه زده کړې وي چې دی ورغلی وي. په خاصه توګه سلام او تشکر باید زده کړې. دې کار ته تل د عزت په سترګه کتل سوي دي.

**۳. په یوه خاص او مستقل ځای کې غونډه کول:**

په لویه سطحه مذاکرې تل په خاصو ځایونو کې تر سره سوي دي. د نړۍ مشران اکثره وخت داسې کوي. د مثال په توګه د ریګن او بریژنیو تر منځ په ۱۹۸۰ کې د لویو اصلحو پر کنټرول همداسې یوه غونډه په ریکیویک جزیره کې جوړه سوې وه. د کاروبار او معاملو له پاره به بنایي دا مشکله او غیرعادي وي چې د پورته مثال په ډول یو خاص ځای د غونډې له پاره غوره کړه سي خو اصول ئې تل یو ډول وي: هغه داسې چې: کوښښ وکړئ چې دفترونه په یوه حال کې یا سره نژدې نه وي خصوصاً چې بیا پر اوږدو او تکراري مسئلو مذاکره کوئ. یو مناسب ځای غور کړئ، یو رستورانت او یا کافي شاپ به بنایي یو غوره انتخاب وي خو که ډېر مصروفه او پکښې ګڼه ګوڼه زیاته وي نو بیا ښه نه دئ.

**۴. تشریفاتو ته اماده کېدل:**

دا د لمر په څېر روښانه ده چې د کوم چا سره چې مذاکره کوئ هغه به دې په ډېره تشریفاتي توګه هرکلی کوي. هیڅوک به له یوه پردي سره په یوه داسې بې پروا او ازادانه انداز ملاقات پیل نه کړي چې پر اوږه ئې لاس وراینبئ وي (لکه انډیوالان) او له سترې مسې سره ئې پر ملا وټکوي. اکثره کلتورونه و دې ته د بې پروایۍ او بې عزتۍ په سترګه ګوري. که یوه خارجي هیواد ته تللی یې نو کوښښ وکه چې ستاسي کوربه چې څه کوي هغه ډول رویه وکړې.

**۵. سوغاتونه ورکول او قبلول:**

که تاسي ته سوغات درکړه سي، په عزت ئې قبول کړئ خو ډېر تشریفاتي کېږئ مه. که تاسي ته تر مخه یو څه درمعلومه وي چې سوغات به درکول کېږي نو باید چې بدیل ئې پیدا کړئ. یا د تحفې د قیمت په اندازه یوه بله تحفه ورکړئ او یا په بل مناسب ډول ئې بدیل ورکړئ. دې ته مو باید خاص پام وي چې سوغات مو مقابل لور ته د منلو وړ وي. په ځینو رواجونو کې ځیني شیان بد ګڼل کېږي. دا کیسه د مثال په ډول راوړم. یوه مذاکره کوونکي و خپل هندو حریف ته د غوا د پوست چرمي بسته ورکړه. لکه څنګه چې غوا په هندوانو کې یو مقدس حیوان دئ نو تحفې هم بده اغېزه وکړه. موږ تر اوسه د مختلفو رواجونو د ټکر په اړه وربغږدلو خو همدا د ټکر نکتې د یوه ملک په دننه کې د مختلفو قومونو، رواجونو، سیمو او ژبو تر منځ هم واقع کېدلای سي او حتی د یوې غټې مؤسسې د مختلفو برخو تر منځ هم امکان لري چې پیدا سي که څه هم د مؤسسې لوی هدفونه به یو وي خو د جلا جلا برخو تر منځ ئې تفاهم ډېر ضروري وي. یو ځل بیا یادونه درته کوم چې د دې تر مخه چې د حریف سره مو غونډه پیل سي، کورنی کار مو وکئ. د غونډې په ښو الفاظو او مناسبه طریقه پیلول ډېر ضروري دي.

نور بیا....

(۵)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاريخي ناول)

ليکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسين صديقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا



## تعقيب

له هغه مهاله چي ارشد د مهربانو څخه رخصت واخيست او ولاړی، نو هغې سوړ اسوېلی وکيښ او داسي ئې وويل: شريف او په زړه نيک ځوانه! پر ما بيخي ډېر ګران سوی يې. ته اوس د حسن جهاني څخه وروسته تر ټولي دنيا پر ما ګران يې. لوی خدای دي په خپله ساتنه کي ولره.

شېرخان بيا داسي وويل: بانو! زه هم کټ مټ ستا غوندي حالت لرم. زما زړه نه غواړي چي هغه د بچۀ سقاو غوندي ظالم انسان مقابلې ته يوازي پرېږدم. خو څه وکړو، خپل زخم مجبور کړي يو. نو لوی خدای دي ئې حافظ او ناصر اوسي.

عبدالرحمن مخ شېرخان ته واړاوه او داسي ئې مخاطب کړ: ما ته هم دغه ځوان ډېر ښه ايسي. کله چي ئې خپل سر د شرم او حيا څخه کښته ځړولی وي، نو دا حالت ئې په زړونو کي يو خاص کيفيت پيدا کوي. ضرور به ئې مور او پلار ډېر ښه او شريف انسانان

وي.

شېرخان: هو بالکل. او نه پوهېږم چې په قوم به څه وي.

عبدالرحمن: نه سم ویلای چې څوک به وي. خو په ظاهره داسې ښکاري لکه اسحاق زی (ساکزی) یا خوږیاڼی (خوګیاڼی) چې وي.

شېرخان: که داسې وي نو بیا زموږ د خپل ټبر څخه دئ.

عبدالرحمن: نه پوهېږم، خو زما همدا خیال دئ. موږ په قوم علیزي یو، نو که دی اسحاق زی وي عجیبه به نه وي، ځکه د دې قوم انسانان که نرینه وي یا ښځینه، ټوله ډېر ښایسته دي.

شېرخان: د ښایست څخه علاوه زړه ور او غیرتي هم دي.

مهربانو: خدای دې وکړي چې هغه زما حُسن جهانه او د حبیبې لور سِتاره ورسره راولي.

حبیبه د عبدالرحمن د مېرمنې نوم او د ستارې مور وه. د دې خبرې سره ټولو په لوړ ږغ آمین ووایه.

د مازیګر پر مهال مهربانو شېرخان ته داسې وویل: څومره چې سهار ډېره پرېشانه او غمجنه وم، اوس نه یم. دا عجیبه نه ده چې ارشد به زما حسن جهانه پیدا کړې او راخلاصه کړې وي.

شېرخان: هو عجیبه نه ده، زما طبیعت هم اوس بیخي سم دئ.

عبدالرحمن: خدای دې وکړي چې ارشد بریالی سوی وي.

حبیبه: زما زړه راته وایي چې ارشد به ضرور کامیابه سوی وي.

مهربانو: انشاءالله هغه به بریمن وي او حتماً به بریمن وي.

حبیبه: ګوره دا بچهٔ سقاو څونه قیامت جوړ کړی دئ او حکومتي خلک څونه ډېر ځوروي.

مهربانو: که دارشد لاس بر سو، نو هغه به هیڅ پرې نه ږدي.

شېرخان: ارشد ډېر نیک انسان دئ، ښایي بچهٔ سقاو معاف کړي.

همدا خبرې رواني وې چې د ماښام اذان وسو. ټولو د ماښام لمونځ ادا کړ. تر لمانځه وروسته ئې ډوډۍ وخوړله. کله چې ډوډۍ وخوړه سوه، په انګیټیو کي اورونه بل سول او ټولو ځانونه تاوده کړل.

په نیمه شپه کي یو دم د مهربانو سترګي خلاصي سوې. ځکه یو چا دروازه کرار کرار وټکوله. شېرخان وویل چې دا بې وخته بیا څوک دروازه ټکوي!

مهربانو: خدای دې خیر کړي، داسې نه چې غله وي.

شېرخان: عجیبه هم نه ده. هغوی کمبختانو په همدې ډول په خلکو دروازې خلاصي کړي دي.

وروسته بیا دروازه کرار وټکول سوه او یو نرم او نازک ږغ وسو چې ویل ئې: مورجانې!

مهربانو بې طاقته سوه او د سترګو په رپ کي راوغورځېده او داسې ئې وویل: دا خو زما د ګراني لور حُسن جهاني ږغ دئ.

حسن جهاني لور !...

مهربانو په یو ټوپ سره ځان دراوزې ته ورساوه او د دباندي څخه ورته وویل سوه چي مورجاني! هو، حسن جهانه یم.

مهربانو هم ژر دروازه خلاصه کړه. د دروازې په خلاصېدو سره حسن جهانه، ستاره، اشرف او ارشد خوني ته راننوتل.

په خونه کي برقي څراغ لګېدی چي په رڼا کي ئې هر څه ښه معلومېدل. حسن جهاني خپلي مور مهربانو ته سلام واچاوه او هغې هم دا په خپل ځیګر پوري ټینګه ونیوله. دا مهال حسن جهانی لږ وژړل او د مهربانو سترګي هم له اوښکو ډکي سوې.

د دې ږغونو او کړپ و کړوپ له امله هلته عبدالرحمن او حبیبه هم راویښ سول. حبیبې د سترګو د مښلو په حال کي وویل چي آیا زما ستاره راغله؟

مهربانو د حسن جهاني سره تر محبت وروسته ستاره هم په غېږ کي ونیوله او ویې ویل چي هو، ستاره او حسن جهانه دواړي راغلې.

حبیبه فوراً راوپاځېده او داسي ئې وویل: شکر یا خدایه ستا ډېر شکر پر ځای کوم. ستارې لور! زه خو ستا د پیدا کېدو څخه نامیندہ سوې وم.

ستاره راوغورځېده او د حبیبې په غېږ کي ئې ځان واچاوه او ورته وئې ویل چي: هو، راغلم او خدای مهرباني راباندي وکړه، دا دئ بیا سره یو ځای سوو.

حبیبې هغه ټینګه نیولې وه او د ناز ورکولو په حال کي ئې وویل چي زه خو بیرته ژوندی سوم زما د سترګو نوره! زما ژوند بیا تازه سو. تاسي دواړي د غلو د منګولو څخه څنګه راخلاصي سواست؟

ستارې د ارشد خوا ته په اشاره سره وویل چي موږ د دغه شریف ځوان په واسطه خلاصون وموند.

حبیبه د ډېري مینې او خوښۍ په څپو کي راولاړه سوه او د ارشد خوا ته ورغله او ورته ویې ویل چي ستا بلا واخلم شریف ځوانه! زه او زما خور مهربانو چي تر څو ژوندۍ یو ستا احسان مندي به یو.

حسن جهاني په شرمناکه او حیاناکه نظر سره ارشد ته کتل او مهربانو ئې داسي مخاطب کړه: مورجاني! ډېر ټینګ یخ دئ او ارشد د دې سخت یخ څخه د ځان ساتلو له پاره کوم کوټ هم نه لري. ځکه هغه خپل تود کوټ دا دئ ما ته راکړی دئ. داسي نه چي یخ ئې ووهي.

مهربانو لا تر دې وخته د حسن جهاني صورت ته کتل او یو دم ئې د هغې کوټ ته وکتل او په خندا سره ئې وویل چي واه! کوټ دي اغوستی دئ! له بدو سترګو په امان اوسې. دا تور کوټ څنګه ښه درسره ایسي، لږ درباندي غټ دئ... او ارشده! تا خو یوازې جاکټ اغوستی دئ. حتماً دي یخ کېږي، واخله زما شال درباندي واچوه.

بس په همدې ویلو سره مهربانو خپل پشمي شال د اوږو څخه ایسته کړ او پر ارشد ئې واچاوه. دا تور شال وو. ارشد چي یو سپین مخی تازه ځوان او نوی پر ځواني راغلی وو، نو یو څه ښځینه شباهت ئې درلود. د شال په

اچولو سره ئې څېره نوزه هم ښایسته او نوراني سوه. حسن جهانی چې ورته وکتل نو اول ئې سترګې کرار کرار ورپولې او بیا ئې دواړې سترګې د ده په څېره کې ښخې کړې. ستاره چې شوخه او مسخراچې وه، هغه ته یه کتلو سره ځان ټینګ نه کړای سو او بې له اختیاره ئې ارشد ته داسي وویل: «خوري سلام! له کومه ځابه راغلې یې؟»

ارشد وشرمېدی او سترګې ئې کښته واچولې. ټولو ښځو ډېر وخندل. مهربانو ستارې ته وکتل او ورته وئې ویل چې ته ډېره شوخه او ټوکي نجلۍ یې، هر وخت دي طبیعت ډېر راسته او آراسته وي. بې له ټوکو دي هیڅ طاقت نه کېږي. بیا ئې مخ ارشد ته واړاوه او ورته وئې ویل چې ارشد زویه! ته څونه ډېر شرمندوکی یې.

ستارې د هغې خبره غوڅه کړه او په ډکه خوله خندا ئې ورته وویل چې: «کوم ارشد؟ هغه به کوم بل څوک وي! دا خو مېرمن ارشدي ده!» ژر ئې ارشد ته مخ واړاوه او داسي ئې مخاطب کړ: خوري! په دې یخه او نیمه شپه کي څنګه دباندي راوتلې یې؟

ارشد سر کښته وځراوه او خندل ئې. ارشد ډېر ښایسته وو او هر حرکت ئې جذبوونکی وو. پر حسن جهانی د ده دغو زړه راکښونکو حرکاتو او سکناتو نوره اغیزه هم کوله. مهربانو ارشد ته وویل چې زویه! ته د دې شوخي نجلۍ په مسخرو وشرمېدلې، راسه دلته زما څنګ ته کښېنه.

ارشد ورته وویل چې اوس شپه ډېره تېره سوې ده. مور، ټولو او ستاسو اولادونو له ستړیا پکې سفر کړی دئ. داسي نه چې د ډېرې داستي او بې، خوبۍ څخه له دوی نه کومه یوه ناروغه نه سي. که ما ته اجازه وي، نو سهار به انشاء الله وختي، ستاسي خدمت ته حاضر سم.

مهربانو: ښه، څنګه چې ستا خوښه وي زموږ هم خوښه ده. خو آیا نه غواړې چې د حسن جهاني د پلار سره ووینې؟

ارشد: ولي نه ورسره ګورم؟! آیا هغه به دا مهال ویښ وي؟

مهربانو: هو، هغه ویښ دئ. پر هغه هم نه ډېر ګران یې او په زړه کي ئې ځای لرې.

ارشد: نو زه به هم د هغه سلام او احترام ته حتماً ورسم.

ارشد راولاړ سو او د شېرخان خوا ته ورغی او په ډېر ادب ئې هغه ته سلام وکړ او د احوال پوښتنه ئې ځنی وکړه. شېرخان ورته وویل: نېک او شریف ځوانه! زه ښه یم. زه د هغو جذباتو احساس نه سم کولای چي همدا اوس مې په زړه کي راپیدا کېږي. تا ته مي دا دعا ده چې الله دي تل خوشحاله لره، عمر دي ډېر اوږد اوسه، په خپل هر مقصد کي بریالی اوسې.

ارشد: زه ستاسو ډېر منندوی یم. ستاسو دعاوي به زما د سر سیوری وي.

شېرخان: زه وینم چې ستا په طبیعت کي ادب او حیا خورا زیاته ده. په دې عصر کي چې نجوني شوخي سوي دي، برعکس په یو ځوان کي دومره شرم او حیا د تعجباتو څخه ده. ښه، زویه! ورځه اوس بیده سه.

ارشد او اشرف دواړو شېرخان،

عبدالرحمن، مهربانو او حبيبې ته سلام وکړ او د خوني څخه راووتل. لږ ليرې دواړه يوې بلې خونې ته ولاړل چې تېره شپه هم هماله بيده سوي ول. هغوی د خپلو نظامي يونيفورمونو د بدلولو څخه پرته په بسترو کې پرېوتل او ورين شالونه ئې پر ځانو واچول. څنګه چې ټوله ورځ ئې تګ او سفر کړی وو، نو په آرام خوب بيده سول. هغوی د غلو سره دوه واره جنګېدلي ول او خورا ستړي سوي ول نو ځکه په درانه خوب بيده سول.

کله چې ئې ستړګي خلاصي کړې نو لمر راختلی وو او زريني وړانګې ئې د کړکی څخه خوني ته رانوتلي وې او شاوخوا ئې تکه سپينه او روښانه کړې وه.

ارشد او اشرف کلمه وويله او راوپاڅېدل. روان سول، اودسونه ئې تازه کړل او لمونځونه ئې وکړل. وروسته ئې د سهار ناري وکړ. ارشد وويل: اشرف وروره! د غلو زور او نفوذ له حده زيات سوی دئ. هيڅ يوه لاره هم له خطره خالي نه ده. نو ئې نو بايد ټينګ وځپو. آيا همدا نن پر هغوی ګوزار نه سو کولای؟ آيا هغوی نيولای يا وژلای نه سو؟

اشرف: ولې نه. ښه به داوی چې زه پوځ ته د تيارسی امر وکړم. تر هغه مهاله ته هم ځان تيار او سمبال کړه او پسي راځه.

ارشد: هو، ښه خبره ده. ته درځه زه هم ژر ځان تياروم او پسي درځم.

اشرف چې ناري ختم کړ نو راووتی. ارشد هم خپل پوځي يونيفورم واغوستی، وسله ئې راواخيسته او د خوني څخه راووتی او د شېرخان څخه د خدای په اماني له پاره هغه ته ورغی.

دا مهال د شېرخان سره يوازې مهربانو ناسته وه. عبدالرحمن او حبيبه په بله خونه کې ناست ول. ارشد اصلاً د حُسن جهانی د ليدو له پاره راغی خو هغه په دې خونه کې نه وه. رامخته سو، شېرخان او مهربانو ته ئې سلام واچاوه. شېرخان چې هغه په وسلو سمبال وليد نو پوښتنه ئې ځني وکړه چې زويه دا مهال دي چيري د تګ اراده کړې ده؟

ارشد: زه د غلو د ځپلو له پاره مؤظف او رالېږل سوی يم. د غلو برلاسي توب او قوت له حده زيات سوی دئ. هغوی اوس معلومداره ډغري راسره وهي. تېره شپه چې موږ بيرته راتللو، هغوی پر يوه قافله باندي حمله کړې ده. نو ځکه موږ همدا نن د دغو بدبختو په تعقيب او نيولو پسي ورځو.

شېرخان: تا همدا اوونی ډېره ستړيا ګاللې او قرباني دې ورکړې ده، نو ښه به دا وای چې يو څو ورځي دي دمه کړې وای.

ارشد: عوام د دې غلو له بېري ډېر ناآرامه او پرېشانه سوي دي. که زه په داسي حالت کې استراحت وکړم نو حکومت او خدای ته به څه ځواب وايم؟!

شېرخان: آفرين، زمريالی او توريالی ځوانه! شاباس! ورځه. الله دي بريالی کړه.

ارشد: خو هيله من يم چې تاسو زموږ د راستنېدو تر وخته همدلته پاته سئ.

شېرخان: زما خوښه (يعني رخصتي)

ختم سوې ده. همدا نن باید کابل ته تللی وای. ما د دوو هفتو له پاره رخصت غوښتی دئ، که هغه منظور سي نو دوې اوونۍ به همدلته درسره پاته سم، خو که منظور نه سي نو مجبوراً به روانېږم.

ارشد: که ئې تاسو لازم بولئ نو زه به نایب السلطنه سردار ولي محمد خان ته تلګرام وکړم او ستاسو رخصت به په منظور کړم.

شېرخان: مننه، دې کار ته اړتیا نسته، زه ډاډه او یقیني یم چي زما رخصت به منظور سي.

ارشد: نو چي داسي ده، اوس ما ته رخصت راکړئ.

شېرخان: په سلامتۍ سره ولاړ سې او سلامت بیرته راستون سې.

دا مهال مهربانو راولاړه سوه او د ارشد تر سر ئې څو روپۍ راتاو کړې او هغه ته ئې ونیولې او داسي ئې مخاطب کړ: زویه! دا پیسې واخله او خیرات ئې کړه.

ارشد د پیسو د اخیستلو پر مهال وویل چي زما سره ستاسو هغه اول ځل راکړي پیسې هم تر اوسه موجودي دي، نو هغه او دغه به ټولي خیرات کړم.

مهربانو: حتماً دا کار وکړه، یوه صدقه سل بلاوي دفع کوي.

ارشد مهربانو ته سلام وکړ او د تګ په اراده روان سو. خو مهربانو د دربدو داسي ږغ پر وکړ: آیا ته د حسن جهاني او ستارې سره د لیدو څخه پر ته ځې؟

ارشد همداسي خبره له خدایه غوښته، او ویې ویل: ښایي هغوی دواړي دا مهال بیدې وي.

مهربانو وخندل او ویې ویل: آیا دا هم د خوب او آرام وخت دئ؟ هغوی دواړي په مخامخ خونه کي ناستي دي او مجلس کوي.

ارشد هم هغې خوني ته روان سو او په دروازه کي ئې کرار ږغ وکړ چي آیا دننه راتلای سم؟

شوخي او شیطاني ستارې په خندا ورته وویل چي ولي راځې او څه غواړې؟

ارشد: ستاسو څخه د رخصت اخیستلو له پاره.

د رخصت د خبرې په اورېدو سره د ستارې شوخي یو دم والوتله او داسي ئې وویل: راځه، تشریف راوړه. تاسي چیري ځئ؟

ارشد دننه خوني ته راننووت. دې خوني ته هم د لمر زریني وړانګې راغلي وې او هره څه ځلېدل. دغو وړانګو د ښایسته حسن جهاني څېره دومره برېښنولې او ځلولې وه چي هیڅ نه سوای ورته کتل کېدای.

ارشد دغه ښېحده ښکلي څېرې ته په کتلو سره داسي ځای پر ځای بې حرکته ودرېد تا به ویل چي جادو په سوی دئ.

حسن جهاني خپلي زړه وړونکي او خماري غوندي سترګي راپورته کړې او ارشد

ته ئې په ارامه وکتل. ارشد چې پوځي یونیفورم اغوستی وو نو ډېر ښایسته ښکېښي معلومېدی. ده هم کټ مټ په هماغسې محبت ناکه نظر ورته وکتل. ستارې د ارشد څخه وپوښتل چې تا ولې دغه پوځي یونیفورم اغوستی دئ او چیرې ځې؟

ارشد نابیره د ښکلا د دنیا څخه راکش سو او سترګې ئې څو واره ژر ژر ورپولې او داسې ځواب ئې ورکړ: مور په بچهٔ سقاو او د هغه په ظالم او بې رحمه باندې پسې ورځو چې وئې نیسو یا ئې وځپو.

ستاره: خدای دې دغه غله خو تباه او برباد کړي. هغوی ټول عوام بیخي نا آرامه کړي دي. دا خو ډېر د ثواب کار دئ. حتماً باید د هغوی د نیولو هڅه وسي خو بهتره به دا وای چې څو ورځې وروسته پسې ورغلي وای.

ارشد: مجبوري مو هغوی ته ورولې. دغه ظالمان او ناځوانان هره ورځ لارې نیسي او قافلې لوټوي. د هغوی له لاسه افغانان ډېر مصیبتونه او خوارۍ ګالي.

ستاره: په رښتیا هم د دې سیمې هره خوا ډېره خطر ناکه سوې ده. خلک وایي چې د کوهدامن په وادي کې د بچهٔ سقاواقتدار ورځ په ورځ ډېرېږي.

ارشد: هغه چې پیسې لوټ کړي نو په دغه وادي کې ئې خلکو ته ورکوي. همدا علت دئ چې هغه ورځ په ورځ د هر چا خوښېږي.

ستاره: خدای دې دوی هم لوټ کړي.

ارشد: زه ستا او حسن جهاني څخه د خدای په امانۍ له پاره راغلی وم، زما ...

خو ستاره په خوله کې ور ولوېده او داسې ئې وویل: ورځئ، الله مو کامیاب کړه.

ارشد د مینې څخه په ډک نظر شاپېرۍ غوندې ښایسته حسن جهاني ته وکتل. حسن جهاني د هغه د دې کتلو تاب رانه وړی او یو څه راپورته سوه. داسې فکر وسو چې دا هم د ارشد سره د خدای په امانۍ له پاره راولاړېږي. خو د هغې ځلېدونکې څېرې او نازکو خیالونو د خپل محافظ د رخصتولو اجازه ور نه کړه، نو ځکه پر دا بل اړخ راواوښته او بیرته کښېنستله.

ارشد د خوني څخه راووت او کله چې قطعې ته راورسېد نو وئې لیدل چې ټول پوځیان تیار ولاړ دي. یوې خوا ته اشرف هم پر آس سپور وو. ده ارشد ته سلامي وکړه. ارشد هم ځوابیه سلامي ورته وکړه. یو افسر ده ته آس راوست او پر هغه سپور سو. اشرف د ده تر څنګ ورسره ودرېدی. ارشد پوځیانو ته د حرکت قومانده ورکړه. پوځیان هم په مضبوطو ګامونو سره روان سول. ارشد او اشرف د هغوی تر خوا ورسره روان سول.

نور بیا...



لیکوال: استاد م. معصوم هوتک/کاناډا

# د غره او د وره

(څلرمه برخه)

**د خاطرو په ګرداوو کې د ګرداوو خاطرې**

د ګرداو (ګرداب) له اصطلاح سره زموږ اوسني ځلمیان ناآشنا دي. خو زما همزولي او تر ما زاړې کندهاریان پوهېږي چې ګرداو څه ته ویل کېدی؟ ګرداو د کندهاري روښانفکرانو د ادبي، اجتماعي او سیاسي افکارو د تبادلې او پر هغو باندې د مباحثې مرکزونه ول چې د کندهار په هوټلو (رستورانو) کې به د ماځیګر له خوا جوړېدل او د شپې تر ناوخته به ئې دوام کاوه. زما د ځلمیتوب په وخت کې د کندهار ګرداوونه ښه په زور سره روان ول. په کندهار کې ئې رستورانت ته هوټل وایه. په دغو هوټلو کې خلکو، معمولاً مسافرو، ډوډۍ هم خوړل او د ماځیګر له خوا د ځوانانو د تفریح او ناستې ځای هم وو. ځوانانو به په هوټل کې معمولاً د ماځیګر له خوا د شیدوچای چې هغه وخت ئې (میکس) باله او شیریخ خوړ. کندهار سره له دې چې د طبیعت له خوا په سمسورتیا نازول سوی وو، خو د دولت او حکومت د ناأهلیو له اسیته ئې په ټول ښار کې یو ښه پارک نه درلود، چې ځوانان او نور عام اولس دې پکښې تفریح وکړي. د هوټلو (رستورانتونو) په یوه برخه کې به د سطرنج لوبغاړي کښېنستل او سطرنج به ئې کاوه او په بله برخه کې به ځوانان د ګرداو په نیت کښېنستل. د ګرداو په دغو مجلسو کې به یو چا سوال کاوه او د مجلس غړو به په نوبت سره خبرې پر کولې.

کندهار د ادبي، علمي او سیاسي محافلو ښه ډېره اوږده سابقه لري. ارواښاد عطایي د هغې ادبي او سیاسي ډلې یادوني لري چې د کندهار ښار په شاه بازار کې به ئې د محمدعمر دندانساز په دوکان کې غونډې کولې. په دغه دوکان کې د خپل وخت روښانفکران راغونډېدل او د وطن پر حالاتو به ئې سیاسي مباحثې کولې. د دغه دوکان د غونډو زیاتره غړي وروسته د ویښ ځلمیانو د خوځښت عمده کسان او د دغه خوځښت بنسټ ایښوونکي سول. علامه حبیبي د دغه دوکان له مجلسیانو څخه وو[1]. محمدعمر دندانساز او ورور ئې عبدالرحمن دندانساز د کندهار ډېر مشهور غاښ جوړوونکي ول. په اول سر کې د دواړو دوکانونه په شاه بازار کې ول، خو

---

[1] وګ: د استاد یاد: ۱۸۸مخ، چاپ ۱۳۶۴ش.

وروسته د عبدالرحمن دندانساز دوکان په شاه بازار کي پاته سو او محمدعمر د هرات بازار په شمالي راسته کي په یوه بالاخانه کي د غاښو کنډلو او جوړولو مطب راوایست. د محمدعمر دندانساز کور د کابل دروازې په شمالي کلافصیل کي وو. ډاکټرصاحب پالوال ئې دېوال په دېوال گاونډی وو. د عبدالرحمن دندانساز کور او دوکان څنگ پر څنگ او په شاه بازار کي د سدوزو کوڅې شمالي خوا ته واقع وو. دواړو وروڼو د کندهار خلکو ته ډېر خدمتونه کړي دي، خدای دې دواړه غریق رحمت وگرځوي، ښه خلک ول. اولاده ئې په کندهار کي پاته ده.

زما د زلمیتوب په وخت کي د کندهار یو روښانفکرانو د راغونډېدلو څو مرکزونه موجود ول چي یو ئې د اروابناد عبدالرحیم هاتف تجارتخانه وه. دغه تجارتخانه په هرات بازار کي د احمدعلي اخندزاده په سرای کي واقع وه. دغه سرای په اول سر کي د موچې دوزانو سرای بلل کېدی. وروسته چي احمدعلي اخندزاده په بیه واخیست، د ده په نامه مشهور سو. څو کاله وروسته ئې د مدخل په سوپ کي عطر پلورونکو دوکانونه راوایستل او سرای د عطرو سرای وبلل سو. دهاتف صاحب په تجارتخانه کي د کندهار زیاتره تعلیم یافته او منور کسان د ماځیگر له خوا راغونډېدل. د پنجشنبې په شپه به ئې د هاتف په کور کي او د جمعې په ورځ به ئې د هاتف د سرپوزې په باغ کي مېله کوله. د هاتف د کوټې دایمي غړي شیخ صاحب عبدالغفور خروټی، عبدالباري خان آشنا، محمدنبي خان محمدي، عبدالصمدخان ویسا (د کندهار د والي ډاکټر تورپالي ویسا پلار)، محمدانور نومیالی، عبدالهادي ریشا، حاجي محمدنبي خان، محمدیوسف ویران چي په عین وخت کي د تجارتخانې د دفتري چارو میرزا هم وو، ډاکټر غلام محمدخان ملیزی، ورور ئې صاحب (اصل نوم ئې راځخه هېر دئ)، محمدعثمان نماینده، اغامحمد خان، شیراحمد خان، قاري سلطان محمدخان او مولانا عبدالباري ول. خو د کندهار نور منورین هم کله کله ورتلل. په دوی کي اوس (۱۳۹۳ ش) صرف حاجي محمدنبي خان او قاري سلطان محمد خان ژوندي دي او په امریکا کي اوسي. دې کوټې ته د سرور کاکو په نامه یو څوک هم راتلی. دا سړی خورا جالب شخص وو. د هر ډول علمي او ساینسي نظر مخالفت ئې کاوه. د مجلس غړو به د ده له بیان څخه د یوې تفریحي وسیلې په توگه کار اخیست. د اروابناد هاتف د خولې خبره ده چي ویل به ئې: "د سیاسي اختناق اوږدې شپې و ورځي د سرور کاکو له اپلتو او برغزوو پرته په بل شي نه لنډېدلې".

د منورینو بل مرکز د حاجي فضل محمد خان الکوزي تجارتخانه وه. دا تجارتخانه د ښکارپر بازار په ختیځه راسته کي چارسو ته نزدې واقع وه. سید عبدالظاهر رؤفي او نورالحق خان توخی هم کله کله دغه بانډار ته ورتلل. د دغه مرکز غړي وروسته د اتحاد ملي په گوند کي شامل سول. حاجي فضل محمدخان الکوزی د ثور د فاجعې له لومړیو قربانیانو څخه وو. ما له نزدې پېژاند او زموږ د

کورنۍ له مشرانو سره محشور وو. آخر وار مې د همدغې فاجعې په کال د ډنډ اولسوالۍ د اصلاحات ارضي په دفتر کې ولید چې د خپلو لومړۍ درجه مځکو او باغو اسناد ئې دغه دفتر ته د تصفیې په نیامت راوړي ول، خو د دفتر د مسئول له خوا ډېر سپک چلند ورسره کېدی. زه هم دغه دفتر ته د خپل پلرني جایداد د تصفیې په نیامت ورغلی وم. کله چې ما په قهر او غضب سره د دفتر دمسئول د دغه سپک وضعیت په مقابل کې اعتراض وکړ، ده مرحوم مداخله وکړه او ما ته ئې د زغم او تحمل توصیه وکړه. تر دفتر دباندې ئې د خبرو په ترڅ کې راته وویل چې: "هیواد ته خورا لوی ناورین راروان دئ. بادار دې خپل فضل کوي". زه هغه وخت نه پوهېدم چې د دغه ناورین په لومړیو شهیدانو کې به د ده نوم شامل وي. خدای دې شهادت قبول او جنتونه دې نصیب کړي. ډېر ملي او وطندوست افغان وو. د دوی لومړنی دوکان د کابل بازار د ملاګلداد کوڅې په ختیځ کې واقع وو.

د شېراحمدخان تجارتخانه چې په شاه بازار کې د عطاجان سرای د سوپ پر سر واقع وه، هم د عالمانو او سیاسیونو د ناستې ځای وو. دلته زیاتره د کندهار دیني عالمان لکه فضیلت مآب فضلواخندزاده صاحب، مرحوم شیخ عبدالغفور خروټی، اروابناد عبدالخالق اخندزاده واسعي، مرحوم عبدالهادي خان توخي، مرحوم محمدعثمان نماینده او نور وسیع النظره عُلماء راغونډېدل.

د مطبوعاتو دفتر هم د منورینو د راغونډېدو یو مرکز وو. دلته به د ماځیګر له خوا اغامحمدخان کرزی، عبدالصمدخان ویسا، محمدولي ځلمی، محمدابراهیم عطایي، محمدعلم بځرکی، غلام محی الدین ایوبي، عبدالقدوس نجیب، مولانا محمدشریف حبیبي، محمد ناصر نصرت، محمدانور نومیالی، نادر ایوبي، نوراحمد بریښ[۲]، عبدالرازق پالوال او نور لیکوال او پوهان راغونډېدل. دا کسان زیاتره د طلوع افغان او کندهار مجلې قلمي همکاران هم ول. لومړیو شپېروتنو ئې په بېلابېلو کلونو کې د مطبوعاتو د مسئولینو په توګه دندې هم لرلې. چې رشتیا سي، د مطبوعاتو د ادارې دغو مشرانو د کندهاري زلمیو په روزنه کې ډېر ستر خدمتونه کړي دي. د حکومت د اختناق په شرایطو او د وخت د بیروکراسۍ په مصیبتو کې دغو مشرانو په ډېره زړه ورتیا سره د ځوانانو روزني ته ملا تړلې وه. زما د اروابناد اغامحمد خان کرزي هغه خبره تر اوسه لا هم په غوږو کې ازانګې کوي چې پنځوس کاله پخوا ئې موږ ته وویل: "کندهار تش تور ولاړ دئ! ستاسي زلمو په همت به ئې تېر عظمت بیرته راژوندی کېږي". د اروابناد عبدالصمد ویسا هغه پخه وینا اوس هم راپه یادېږي چې ویل به یې: "کاش انرژي ستاسي زلمو او عقل زموږ. زاړو وای، دې وطن ته به ئې ډېره ګټه رسېدلې وای".

---

[۲]دا سړی له پوهاند ډاکټر نوراحمد بریښ پرته بل څوک وو. د دغه نوراحمد بریښ پلار دوست محمد بریښ نومېدی او په شاه بازار کې ئې د بوټو پلورلو دوکان کاوه. د خطي کتابو خورا ستر کلکسیون ئې درلود.

د مطبوعاتو د دغه مجلس د غړي مولانا محمدشریف حبیبي ظرافتونه په کندهار کي د عام وخاص "نُقل مجلس" ول. مولانا به په ظریفه ژبه د حُکامو مظالم او د عوامو خرافات اوناوړه دودونه انتقادول.

د کندهار اولسي شاعرانو هم د راغونډېدو ټاکلی ځای درلود او هغه د سیداحمد بیزار دوکان وو. دا دوکان د کندهار د ښکارپر بازار په لوېدیځه راسته کي د مددخان جامع پر مخامخ واقع وو. دغه مرکز ته مولوي عبدالغفار بریالی، عبدالحکیم شیدا، ملا محمدعیسی، ملا منان اخند، نصرت صاحب، محمدیوسف ویران، نومیالی صاحب او نور محلي شاعران ورتلل. سیداحمد بېزار په دغه دوکان کي چیني لوښي پتري کول. وروسته ئې دا دوکان پرېښوو او په ګریش اډه کي ئې مستریخانه راوایستله. د ماځیګرله خوا به کله کله د حاجي محمدحسن بوټساز دوکان ته د مجلس له پاره تلی. د حاجي محمدحسن بوټساز دوکان هم د محلي شاعرانو او کندهاري ښکاریانو د ناستي ځای وو. سیداحمد بېزار خورا ښه حافظه درلوده او د زیاترو کندهاریو شاعرانو غزلي به ئې په یاد زده وې. ده د ګلزار سیداحمد په نامه د هغو شعرونو یوه مجموعه ترتیب کړې ده چي د کندهاریو شاعرانو مقامي غزلي پکښې خوندي دي. مقامي غزلي هغه غزلي دي چي د موسیقۍ پر مقامو برابري ویلي سوي وي. بېزار صاحب ادبي ذوق تر مرګه وپاله.

د کندهار د عزت کافي (رستورانت) د ګرداو اصلي او اساسي مرکز وو. دا رستورانت د سینما (د عمر ابن خطاب اوسنۍ جامع) و لوېدیځي خوا ته واقع وو. د ګرداو بنسټ ایښوونکي همدلته کښېنستل. د عزت کافي د دروازې پر سر یوه جنجالي لوحه ځوړنده وه. په دغه لوحه کي د خطاط د ناپامۍ له امله د عزت کلمې د (ز) ټکی لږ څه د (ع) خوا ته ورښکېدلی وو او د هغو کسانو له پاره ئې د ټوکو او ملنډو ښه وسیله پیدا کړې وه چي د عزت کافي د ګرداو له غړو ئې ښه نه راتلل. په دغه ګرداو کي عزیزالله خان واصفي، ډاکټر محمدصدیق (ښاروال)، فریدخان، لالا عبدالواسع (د عبدالرحیم هاتف ورور)، جان محمد خان پلار، لیکراج هندو، استاد عبدالمنان خان، عبدالمجید سربلند، عبدالحی خان معلم، عبدالرشید آرین، محمدصدیق ظهیر او نور منورین شامل ول. د دغه ګرداو ډېر پوه شخص او د ژوري مطالعې څښتن لالا عبدالواسع وو. دی د کابل پوهنتون د اقتصاد پوهنځي څخه فارغ سوی وو، خو دولتي کار ئې نه کاوه. پر انګرېزي ژبه ئې بشپړ تسلط درلود. د مسایلو په تشریح کي ئې نظر ډېر ژور وو. د کابل له پوهنتوني استادانو او د علومو اکاډمۍ له مهمو غړو سره ئې پېژندل او هغوی ورته د یوه دانشمند په سترګه کتل. دی ډېر پخوا د امریکا متحده ایالاتو ته تللی او هورې پاته سوی وو. د نیویارک په ښار کي اوسېدی او هورې مړ سو او د افغانانو په هدیره کي ښخ دئ. د عزت کافي دغه ګرداو وروسته میرویس هوټل (رستورانت) ته رانقل سو. په دغه وخت کي عزیزالله خان واصفي پارلمان ته ولاړ او نور ئې

په گرداو کي غړيتوب نه درلود. دغه گرداو ته به د ملاعرب په نامه يو مُلا هم راتی. ملا عرب د کتابو گرځنده پلورونکی وو. د ورځي به ئې ځيني نادر قلمي يا چاپي کتابونه خرڅول او د مابښام خرڅ ئې برابراوه. قانع او بې ازاره سړی وو. خو حوادثو ته ئې منفي نظر درلود. د گرداو مباحثو ته به ئې ټينگ غوږ نيولی وو او کله چي به د افغانستان د ترقۍ پر لاروچارو باندي خبري کېدلې او د ده نظر به وپوښتل سو، ده به تل دا يوه خبره کوله چي: "افغانستان پرمختگ نسي کولای". کله چي به له (ولې؟) پوښتي سره مخامخ سو، جواب به ئې دا وو چي: "خاوره ئې قابل د زرع نه ده". د ده دا خبره به د گرداو غړو هر وخت په ټوکو کي استعمالوله.

په سليمي رستورانت کي هم منورين کښېنستل. په خپله محمدحليم سليمي، استاد عبدالمنان خان، ليکراج او نور کسان چي اوس مي له ذهنه وتلي دي، راغونډېدل. استاد عبدالمنان خان د کندهار په معارف کي د ښه نامه څښتن استاد تېر سوی دئ. په احمدشاه بابا لېسه کي ئې د انگليسي ژبي تدريس کاوه. څه موده ئې د عالي دارالمعلمين د مدير په توگه هم خدمت کړی وو. کور ئې د شېرعليخان په کوڅه کي وو. ليکراج د کندهار د هندوانو په کميونيټي کي ډېر منور او تحصيل يافته زلمی وو. د هندوانو هلکان او نجوني ئې له مسلمانانو سره و ملگرتيا ته رابلل. څو خارجي ژبې ئې زده وې او په حقوقو کي ئې ليسانس درلود. د ژوند وروستي کلونه ئې په هندوستان کي په مهاجرت تېر کړل.

هورې ئې هم د افغانانو په خدمت کي شپه او ورځ نه کتل.

د پښتونستان هوټل گرداو زياتره د ښوونځيو د شاگردانو د ناستي ځای وو. دا نو هغه وخت وو، چي په هيواد کي اساسي قانون نافذ سوی او ډيموکراسي اعلان سوي وه. دغه گرداو د هغه وخت د سياسي حلقو او سازمانونو تر زيات نفوذ لاندي وو.

چي خبري سره راغونډې کړم، گرداوونو د کندهاريو زلميو په روزنه کي ډېره اغېزه درلوده. له کتاب او مطالعې سره ئې اشنا کول. د هيواد د پرمختگ او ترقۍ افکار ئې په زلميو کي تزريق کړل. له بدو اخلاقو او نورو ناوړو عادتو ئې راگرځول. له دغو گرداوو څخه لوی لوی پوهان، شاعران، ليکوال راووتل. خو دا خبره بايد هم هېره نه کړو چي دغو گرداوو ته له خارج څخه راغلو کينو او ښی ايډيالوجيو نفوذ وکړ. گرداوونه د سياسي مناقشو او منازعو په مرکزو بدل سول. خورا ډېر زلمي استعدادونه ئې د ايډيالوژيکو نفرتونو قرباني او د افراط پر منحرفو لارو ئې روان کړل. خو دا انحراف د هيواد له عمومي سياسي جريان څخه جلا مطالعه کېدلای نه سي. د ديموکراسۍ په لسيزه کي (۱۳۴۲ ـ ۱۳۵۲ ش) ټول هيواد ته د ايډيالوژيکي افراط يو سېلاب راغلی وو چي د کندهار گرداوونه ئې هم ورسره متاثر کړل. د دغه افراطي اور لمبې تر اوسه لاهم وچ او لانده دواړه سوځي خو د گرداوونو ډېري ښې او لړې بدي خاطرې به له موږ سره تل پاته وي.



# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

(د عبدالظاهر څرک په نوم)

اووم لیک

لومړی برخه

۱۷/۴/۱۹۹۸م

ښاغلی حاج عبدالظاهر جانه!

السلام علیکم!

روغ او جوړ اوسې، تېر اختر دې مبارک سه!

که زه وپوهېږم چې ته د زمانې د غازیانو او حاجیانو په شمول خوشحالېږې هغه دعا به هم درته وکړم.

ستا په لیک کې یوه سلسله اکاډمیکې پوښتنې راغلې وې چې هم ډېرې وې هم ئې جواب راته ګران وو. خصوصاً چې د هغه له پاره مراجع او مراجعات په کار وه او زه اوس هغو ته لار نه لرم. یا هم د پلټنې او تتبع له پاره باید ووزم چې په وس مې نه ده پوره. نو که جواب نه لیکم هم حیران او که سطحې او سرسرې جواب لیکم آیا ته به په هغه غاړه وباسې؟ په هر صورت ځکه چې مکلفیتونه د وس په اندازه دي، زه به هم دغه کار ته زړه ښه کړم او ستا د لیک په ترتیب به جواب لیکل پیل کړم.

تا کښلي دي چې د ویران صاحب څخه څه څه یادګاري عکسونه لاس ته درغلي دي. زما په ګومان دا غنیمت دي که وکړای سې وئې ساته. زما څخه ئې یوه ښایسته لو مجموعه وه. د ډېرو او نادرو او قیمتي کتابو سره چې په ټول عمر مې له هره ځایه برابر کړي وه او زما خپل د عمرونو یادداشتونه او لیکنې، چې هغه هر څه هزاره ګانو یووړه. دا چې ساتلي به ئې وي که به ئې سوځلي وي هغه نو الله ته معلومه ده. د دې خبرې درد په شخصي لحاظ ما ته ډېر وو. نو دا چې یوه وړه ښېلګه زما د هغو د خاطراتو څخه هر چېرې خوندي پاته وي باید غنیمت وګڼل سي.

تا لیکلي وه چې د مرحوم ډاکټر نجیب الله د سولې سیاست دې ډېر خوښ وو، اما د هغه اعتقاد نه. ستا دا وینا ما ته دوې پوښتنې راپیدا کوي:

۱/ خوښ او ناخوښه د هر چا د ذوق او قضاوت خبره ده. موږ اوس د آزادۍ او دیموکراسۍ په زمانه کې ژوند کوو. د چا حقوق او آزادي محدودول باید وغندو خو د دغې خبرې سره سره باید د قضاوت له پاره بنیاد هم موجود وي او بې بنیاده او د خپلې خوښې سطحې خبره باید نه وي. تر کومه ځایه چې زه پوهېږم د عقیدې علم یوازې د خدای تعالی سره وي (تر څو عقیده د انسان په زړه کې وي) ځکه چې دا فقط د خدای او د بنده تر منځ اړیکې ښکاره کوي او حتی پیغمبر

هم یوازې د وحې له لارې یا د هغو نښانو پر اساس د خلکو په عقیدو خبرېدای سوای چې خدای تعالی و ده ته ښوولې. څکه نوزه پوه نه سوم چې تا ته د مرحوم ډاکټر نجیب الله عقیده د کومه ځایه درمعلومه سوه چې خوښه دې نه سوه؟

۲/ او ستا د وینا مطابق به نو آیا شیخ صاحب دا حق نه درلود چې د مصطفی کمال پاشا سیاست تائید کړي او عقیده ئې په خپله و هغه ته ورپرېږدي؟

بل دې لیکلي دي چې اوس خلک له مرحوم امان الله خان څخه بد نه وړي او وایي چې د هغه د سقوط عامل هم دغه قشر وو.

زما چې په زړه دي له امان الله خان څخه فقط هغو خلکو کرکه کوله چې د نوښت او روڼا دښمنان وه. یا هم هغه خلکو چې پر خپله پاچهي او خپل قدرت ټپرېده. عامو خلکو او روشنفکرو منورینو هیڅکله بد نه وو ګڼلی او که ئې څه انتقاد درلودلی وي هغه به هم د اصلاح په منظور وو نه د رنګولو په غرض. اوس ستا د وینا په استناد راځم ستا د لومړۍ پوښتني و جواب ته.

۱/ که چیرې مصطفی کمال پاشا هغه کسان چې د ملي آزادۍ، ملي جهاد او خاورې د تمامیت د تامین او ملي سلطې د تحقق په لار کې خنډ وه بې اثره کړي وي. آیا دا به نو د هغه د غندلو او بد ویلو له پاره کافي دلیل وګڼل سي؟ هغه لو عثماني امپراتورې چې د اسلامي خلافت په نامه یادېده. پر غربي ایشیا، جنوبي اروپا او شمالي اروپا راتاو سوې وه. د اروپا اوسنی اسلام د هغو د مېړاني او تورې په طفیل منځ ته راغلی او تر اوسه په ځینو اروپایي هیوادونو کې د مسلمان او ترکي کلمه یو د بل مرادف کارېږي. هغه په لومړي عالمي جنګ کې د انګلیس او فرانسې د ګډې پراخې غوښتونکې او اسلام دښمنې پالیسۍ په نتیجه کې داسې ټوکر ټوکر سوه چې په اروپا او شمالي افریقا کې ئې ځای په ترتیب محلي قدرتونو او د انګلیس او فرانسې استعماري قدرتونو ډک کړ. د منځني ختیځ پر عربي نفت خېزه مځکو هم دوی په خپله مسلط سوه او هم ئې داسې خلک لکه شریف حسین او عبدالعزیز ابن سعود پر پښو ودرول، ولمسول، تقویه کړل او د عربي نشنلیزم او اسلام په نامه ئې د ترکانو د عمرونو د پېرزوینې ډکه او اسلامي سلطه د انګلیسي او فرانسوي استعمار په ګټه پای ته ورسول. تر دې اندازې چې په خپله په ترکیه کې دننه د هغه ملک غربي سواحل د ازمیر په شمول د یونان لاس ته ولوېدل. قبرس خو پر مخ ولاړ او وړوکې انګلیسي مستعمره سوه، چې شخړه ئې اوس هم د یونان او ترکیې تر منځ فیصله سوې نه ده، خو په دغه حال کې چې د ترکیې دولت سقوط کړی وو په تجزیه محکوم وو. سلاطین ئې له منځه تللي وه. عسکرو ئې ماتې خوړلې وه. په داخل کې ارمنیانو د خارجي دښمن (یونان) سره لاس یو کړی وو. په دغه وضع کې چې مصطفی کمال پاشا د خپلو محدودو ملګرو په ملګرې شکست خورده عسکر راټولول، قومي ملېشا ئې راغونډول او د هیواد و ژغورلو ته ئې په تش لاس اقدام کاوه، که ئې یو عده ارتجاعي غیرملي او کارشکن قوتونه چې د دښمن سره ئې ترون او همکاري هم څرګنده وه. د دغه

لوی مقصد په لار کي هغه کسان په داسي حال کي ځپلي وي چي بله لار هم نه وه آیا دا ئې نو خورا لوګناه کړې ده؟

هر څه چي هم وي، د وطن د نجات او نوي ملي ترکي جمهوریت د تاسیس په مقابل کي په ډېره څېړنه نه ارزي. عین دغسي عمل رضاشاه هم وکړ او د هغه په نتیجه کي ده او د ده زوی پنځوس کاله بې غمه حکومت وکړ. که څه هم بالاخره د هغه زوی دغه ځبلي مار وواهه او له منځه ئې یووړ. امان الله خان که څه هم غوښته چي د مصطفی کمال باشا پر پله پل کښېږدي دا کار ئې و نه کړای سوای په خپله ئې سقوط وکړ.

دا چي ګویا مصطفی کمال باشا دي دېرش زره علماء (مذهبي) وژلي وي یو پاروونکی او اغراق آمېزه عدد دئ او له هغې منشاء څخه نشات کوي چي د اتاترک د ملي نهضت یا نورو دغه ډول نهضتونو پر خلاف ئې جبهه نیولې وه. امان الله خان د هغه ښکار سو، جمال عبدالناصر د هغه قرباني سو. صدام حسین د هغه هدف دئ. اوس هم هغه ځواکونه بیدې فتنې ویښوي، آوازونه که له مختلفو حنجرو څخه راوزي هم ئې منشاء یوه ده، ماهیت ئې یو دئ. د مولانا په قول:

این هـــــمه آواز از شه بود
گرمی از حلقوم عبدالله بود

او دا چي د مولانا مرقد په قونیه کي و اتاترک ته نژدې پروت دئ که ئې د هغه له روحانیته څخه الهام اخیستی وي هم عجبه نه ده.

۱ – ب: بله نیوکه چي تا پر هغه کړېده دا ده چي هغه پر ترکي ژبه ایمان راوړی وو. ایمان خو به لا سړی نه وویلای سي خو مینه ئې محققه ده. هر څوک هم باید د خپلي ژبي سره مینه ولري، ځکه پردۍ ژبه به څو تنه ممکن زده کړای سي خو د یو قوم روزنه په پردۍ ژبه کي ډېره ګرانه ده او دا کار په خپله خوښه او طوعاً کېږي هم نه خو بالاجبار والاکرام بیا دا عمل غندلی دئ هم ممکن ډېر شدید عکس العمل ولري.

انګرېزانو په پېړیو پېړیو حکومت وکړ، خو د هندوستان ژبه ئې بدله نه کړه یا نه کړای سوای. روسانو د ټول فشار سره دخلکو رسم الخط واړولای سو، ژبې ئې وربدلي نه کړای سوې. خو کمزوره ئې کړې. ګډې ئې کړې او دا کار ئې ډېر غندل سوی وو. په قرنو قرنو زموږ د لیک او لوست ژبه فارسي وه پښتو ئې ورکه نه کړای سوه. اوس چي په پښتو رسم الخط او لیک دود هم تر لاسه کړی دئ ساتنه به ئې د اولس په همت اړه ولري او دا به ډېر دروند کار نه وي ځکه ستونزمنه مرحله ئې تېره سوې ده، عربي چي د مذهب ژبه ده او خلک ډېره مینه هم ورسره لري ځکه چي ډېره سوچه مذهبیان دي نو عام خلک لا یوې خوا ته پر ېږده حتی چي زموږ ملا صاحبان لا اکثره پر عربي نه دي مسلط سوي. که د دې وضع په درک باندي د ځوان ترکي دولت باني او مؤسس خپلي ژبي ته ترجیح ورکړې وي دا ئې نو څه بد کړي دي؟

که چیري د هغه عمل ناوړه او ناخوښه وای. دی به ئې د ترکانو پلار نه بللای او د ده پر نظریاتي اساس به ئې خپل د دولت بنیاد نه ایښوولای. نو که رشتیا ووایم د هغه سترو

خدمتو په مقابل کي به دا خبر چي "د پوړني سره ئې تعصب درلود که نه" د څېړني ارزښ نه ولري. او د هغه به دغه ویاړ بس وي چي د خپلو ملګرو په معیت ئې مات سوی ټوکر ټوکر سوی هیواد بیا راژوندی او یو موټی کړ.

په هر صورت هغه خو په خپل وخت کي یو سیاسي زعیم او نظامي قومندان وو. که د هغه تر شا د ده پیروان څه کوي په هغه کي د ده څه بزه ګاري ده؟ ته وګوره هغه څوک چي ځانونه د پیغمبرانو وارثان بولي هغه څه کوي؟ آیا د هغو نادودي بل چا ته سرایت کولای سي؟ دغه تفصیل مي ستا د هغي پوښتني په جواب کي وکیښ چي ته وایې شیخ صاحب خو یو مومن مسلمان وو، مصطفی کمال ته ئې څه ډول عقیده درلودای سوه؟ خو دا هم باید روښانه سي چي شیخ صاحب هغه په دې صفت مانه چي مبتکر قومي مشر او نظامي ستراتیژست وو. د استعمار او د هغه د ګوډاګیانو حیلې، دسیسې او مکرونه ئې په هوښیاري په ډاګه او په مېړانه ناکامه کړه او خپل اولس ته ئې ملي وحدت ور زده کړ. له یوه لوري ئې د روس پراخي غوښتني او له بلي خوا ئې د انګرېزي استعمار بل طرف ته ئې د منطقې ارتجاع چي داخلي مرتجعین هم ورسره ملګري وه ټول ئې شا ته وټمبول او اولس ئې د دغو ټولو په منځ کي په عالي تدبیر خوندي وساته، چي دغه صفتونه ئې طبعاً د ستاینې وړ دي. که چیري دی او د ده ملګري په مخ کي نه وای نو به د ترکیې حال زموږ تر موجوده وضعي هم بدتر وای. اما شیخ صاحب هیڅکله د هغه د مذهبي عقیدې په باب نه دئ ږغېدلی. خو د هغه د سیاست په باب ئې ډېر روایات او دلایل درلودل. چي زما سره هغه ټول اوس حاضر نه دي.

د مځکي پر مخ هیڅ شی ابدي نه وي. زعماء راځي او ځي. پیشوایان راوړاندي کېږي او له منځه وزي. که دا پوښتنه وسي چي اوس هم باید د هغه د سیاست پیروي او پلوي وسي؟ دا خبره په خپله په ترکانو اړه لري، چي دوام ورکوي که پر بله ځي. موږ د مشورې ورکولو حق نه لرو.

یو اصل چي باید ټینګ په نظر کي ونیول سي دا دئ چي کله د یو چا ارزیابي، انتقاد، کره کتنه او څېړنه کېږي په کار دا ده او احوال او ظروف، امکانات او د کار موانع ... ټول په نظر کي ونیول سي نه دا چي د یوې بلي زمانې تر ایجاباتو او مقتضیاتو لاندي د پخوا زمانې یا تېر وخت یو مشر ندافي سي. که داسي وي نو بیا د مځکي پر مخ هیڅوک د هري درجې چي هم وي سالم نه سي پاته کېدای او نه هم خدای تعالی یو انسان د ټولو زمانو له ارزښتونو څخه ډک پیدا کړی دئ.

۲/ ستا بله پوښتنه ده د نجم الدین اربکان[۱] د حکومت د سقوط او د هغه د رفاه د حزب د انحلال په باب. یا هم په الجزایر کي د اسلامي حزب تر بري وروسته نظامي عمل ته لاس اچول او د هغو د بري له منځه وړلو په باب.

یو اصل چي په نړۍ کي ئې تر یوه حده رعایت پیل سوی دئ هم مقید دئ هم د دغو خبرو مخه نیسي. هغه دا چي قدرت اصلاً د یوې جامعې په اوسېدونکو انسانانو اړه لري. له

[۱] د ترکیې پخوانی صدراعظم.

آسمانه چا ته نه ورکول کېږي. د کوم ټبر یا کورنۍ امتیازي یا میراثي حق نه دئ او د دغه قدرت تمثیل د هغه چا حق دئ چي د ملت په آزاده رایه پرته له زور او فشار او تهدید څخه و یوه چا یا یوې ډلي ته ورکول سوی وي.

سپارل سوی وي او په دغه عمل کي هیڅوک حق نه لري د آینده نسلونو له پاره تصمیم ونیسي، ځکه آیندګان بېلي خوښۍ او بېل ایجابات لري، دغه د انتخاب عمل هم باید په مشخصو او معینو میعادونو کي تکرار سي او ممثلین یا تجدید یا تمدید سي.

هر حرکت چي د دغه خلاف وي که د توري په زور وي که د مذهب په نامه او که د یوې مترقي نظریې د تحمیل په غرض وي غندلی دئ او غیر له هغو مثالونو څخه چي تا یاد کړي دي نور هم ډېر سته چي یوه برخه ئې د هغو مثالو مقابل لوري ته منسوب دي. هغه ټول چي د پورته ذکر سوي اصل خلاف دي د منلو نه دي که څه هم یوه برخه ئې د څو تنو د عقایدو سره هم اړه ولرئ.

۳/ د پورته توضیح او پورته سوال په سلسله کي یا د یوه پر خلاف د بل په تائید تا پوښتنه کړې ده چي: "زه نه پوهېږم چي دوی ولي دین او سیاست سره بېلوي؟ په مسلماني کي دوی څه تاوان لیدلی دئ؟ که چیري دوی د مجاهدینو یا طالبانو اعمال دلیل ګرزوي دا نو بیا بېله خبره ده؟"

ستا د دغي پوښتني اصولي جواب ستا د دوهمي پوښتني په مورد کي څو کرښي وړاندي ویل سوی دئ. اما د پوښتني د تاریخي سیر او انکشاف په باب باید ووایم چي: اصلاً دا خبره یا په سیاست کي دا ډول انکشاف په مسلماني اړه نه لري. اسلامي نړۍ ته دغه ډول تفکر پنځوس شپېته کاله وړاندي معرفي سوی دئ. اصلاً دا ډول مفکورې د مدني اروپا د روشنفکرانو او حکماوو د فکرونو نه ستړي کېدونکو هاندونو، ډېرو ناخوالو او ستونزو ګاللو په نتیجه کي چي کم از کم ئې په دغه لار کي تر دوو پېړیو زیاتي مودې په ترڅ کي ډېري قربانۍ ورکړي دي منځ ته راغلی او اوس ئې نو د تدریجي نفاذ دوې نوري پېړۍ تېري کړي دي چي دولت د کلیسا له منګولو څخه وتلی دئ. تر هغه وروسته فکرونه آزاد سوي. د ذات البیني مناسباتو څخه تبعیض او امتیاز لیري سوی. د خلکو هوسا ژوندانه ته لار خلاصه سوې او وړاندي تګ په برخه سوی دئ او خلک په ژوند پوه سوي دي. لنډه ئې دا چي دا خبره نوې نه ده د څلورو پنځو پېړیو اوږد تاریخ لري. ترخه او زیږه اړخونه ئې بل چا تېر کړي دي. علت ئې څه وو چي په دې لار کي خلک مبارزې ته دربدلي وه؟ مذهب یوه تاریخي مؤسسه ده او خلک ئې په تاریخ کي ژوند کوي. په هغه کي د انسان تعلق خاص د حق تعالی سره وي. ژوند د آخرت د ګټو او خدای تعالی د رضا له پاره پر مخ بېول کېږي د هغه مقصد له پاره د ځکي پر مخ هم اخلاقي معیارونه موجود دي چي اغلباً شخصي او فردي جنبه لري. د ذات البیني معاملاتو پرنسیبونه هم ورکوي اما ځکه چي جامعه او زمانه ولاړه نه ده. تحول کوي، وړاندي ځي وروسته ځي، بدلونونه پکښي راځي، اجتماعي روابط هم پر یوه حال نه پاتېږي، نو داسي وختونه راځي

چي پر پخوانیو ترازوګانو، د بعدي زمانې دقیق تولونه سم نه راوزي او پخوانۍ مؤسسه بیا د عامو خلکو په خوښه معیارونه نه سي بدلولای. نو نوی ژوند تر پخوانو مناسباتو لاندي ښه پر مخ نه ځي. په دغو حالاتو کي د اجتهاد ضرورت منځ ته راځي او د اجتهاد سره ټول پخواني قدرتونه توافق نه کوي. دا وخت نو بیا د بدعت او سنت لاینحله او لاینقطع جګړه منځته راځي چي روزانه ژوند د ستونزو سره مخامخ کوي.

ته اوس وګوره تلویزیون او کېمره په دې ګناه اعدامېږي چي تصاویر ښکاره کوي یا جوړوي اما د حج له پاره پر پاسپورټ د یوه اسلامي مرکز د سفر په نیت باید عکسونه نښلول کېږي. ساز او طرب ممنوع اما نعتونه پر مقاماتو او راګونو برابر ویل کېږي او اورول کېږي. ددغه ډول محسوسو او تضادونو په منځ کي ژوند کول خلک و دې خبري ته مجبور وي چي خپله خاصه پاکه عقیده د مذهب له پاره د آخرت له پاره د خدای له پاره وساتي. اما د دنیایي معاملاتو، چارو، سیاستونو له پاره انساني لار غوره کړي ځکه دا ښکاره خبره ده چي انسانان چي هر څه زور هم ووهي د ژوند عراده د تاریخ مرحلې ته تر شا نه سي پوري وهلای. لځي پښې څوک نه ګرځي نه په نس پوري ډبري تړي. د اوښ پر ځای فرانسوي پیژو، د زک پر ځای د برق رڼا ... او فکر په تاریخ کي. دا دوه که په هر څومره زورور کېبل سره غوټه هم سي ټینګېږي نه. که د چا خوښه وي که نه.

د غلامۍ فصل او باب تر کتاب دباندي مصداق نه لري ځکه ئې نو لوستل کوم مشخص مقصد ته ګټه نه رسوي. ممکن زموږ فقهاء و دې خبري ته حیران پاته سي چي د چا په پیسو رانیولي مریی هم د چا په حکم یا په کومه اعلامیه آزادېدای سي؟ ځکه چي موږ و دې خبري ته خاصه توجه نه ده کړې چي خبر هم نه یو او دا دئ هغه فصل و باب لا په مدارسو کي پسي وایو. او دوام مو ورکړی دئ اما پر څه؟

یا دا خبره چي دنیا وایي ښځه او نر سره برابر حقوق لري او د انسانیت په مفهوم یو پر بل امتیاز نه لري. موږ به ممکن د دې خبري په مقابل کي ساکت سو چي د ښځو ټوله جامعه که شاهدي ورکړي دا شاهدي د منلو نه ده تر څو نر ورسره نه وي او په هغه وخت کي هم دوې ښځي پر یوه نر. په موږ به دا ومني چي ښځه ناقص العقل او ناقص الدین ده، هر څوک چي وي او نر کامل العقل او کامل الدین دئ هر څوک چي وي. دا به نو په مدني دنیا څه ډول څوک ومنلای سي او د ... انا چي هر څه سرزوره هم سي د سېلاب د اوبو په مقابل کي خو آب بازي نه سي کولای او له لاسو لوېږي. خصوصاً چي باروت ئې هم د بل تر لاس وي. ښځو ته د کار او تعلیم حق د فحشا معادل نه دئ او د دنیا په نظر مساوي مخلوق د مېړه په کامل تابعیت مکلفي هم نه دي: "لهن مثل ما علیهن".

په دغو مواردو کي د دنیا زرو ملیونو انسانانو (په سل ملیونه کم افغانستان، اېران، عربستان ...) دنیایي او مدني قوانین منلي دي. جهاد فی سبیل الله (باموالهم و انفسهم)

د خدای د دین په ترویج کې د شرک او کفر په مقابل کې دا پنځه سوه کاله کېږي له رواجه لوېدلی دئ او تعبیر ئې و دغه ته راکښته سوی دئ چي یو مسلمان بل مسلمان د خپل حکم نافذولو او غنیمت تر لاسه کولو له پاره ئې کوي. لیري مه ځه خپلي شاوخوا ته په بې طرفانه صورت ځیر سه، چي د روس اشغال او حضور (بې دینه، دهري، بې کتابه اجنبي) د مسلمانۍ په مورد کي ډېر سوالونه پیدا کړي وه او که تر هغه وروسته؟

اصلاً خبره په دې کي ده چي خلک ولي دین او سیاست سره بېلوي. دا ځکه چي سیاست د انسانانو د ذات البیني روابطو او ضوابطو هغه اصول دي چي ضرورت و تعبیر او تفسیر ته نه لري په خپل لاس ئې جوړوي او کله چي ناچله سي پر ځای ئې بل قانون چي بیا یو څه وخت وچلېدای سي کښېنوي. دغه ئې سهولت دئ او معنی ئې د دین او مذهب سره مخالفت نه بلکي له هغه څخه بېلوالی او استقلال دئ.

یقیناً چي موږ د فهم په لحاظ او د وسائلو په اعتبار مهلت او نوبت ته ضرورت لرو، او هغه څه چي په دنیا کي کېږي موږ ئې نه تحمل لرو او نه باید هغه وزغمو. مثلاً همجنس بازان په امریکا کي په ډلو ډلو راوزي او د کلنتن په مقابل کي مظاهرې کوي او وایي چي څه چي موږ کوو هغه زموږ خپل کار دئ تاسي زموږ په ذاتي مسائلو کي د مداخلې حق نه لری او دا چي په نظامي برخه کي د دغه ډول خلګو په مورد کي په ترفیعاتو کي تبعیضي برخورد کېږي هغه باید لیري سي او کلنتن ئې دونه په تکلیف کړ چي یو وخت ئې په تلویزیون کي وویل: داسي ښکاري چي اوس نو ګویا موږ د دغو خلګو تر غوښتني پورته مهمه مسئله نه لرو چي هره ورځ د دوی په جنجال اخته یو. د دې په مقابل کي موږ باید دېوال پر راونړوو.

زما د خبري معنی دا نه ده چي باید و دې خبري ته د مباح په نظر وکتل سي یا د انګلیس او امریکا معامله ورسره وسي. اما زموږ مجازات هم منصوص نه دي اجتهادي دي. په بل اجتهادي نظر ئې تعدیل ممکن دئ. لیکن دغه ډول تشدیدي مجازات موږ د دنیا په نظر کي څه ډول معرفي کوي؟

که د مثال ور کولو سلسله اوږده نه کړو او وګورو دا به ښکاره سي چي له اندونیزیا څخه د افریقا تر غربي سواحلو پوري چي د دنیا د مسلمانانو لوی اکثریت او څو پنځوس دولتونه پراته دي. له دوو درو پرته ټول خپلي اداري تر مدني او جزائي یا په بل عبارت دنیایي او انساني قوانینو لاندي کوي او هیڅا هم له مذهب او اسلام څخه نه ده لیدلې او د هغو قوانینو د ترتیب او تدوین پر وخت قانون ساز له دغو منابعو څخه استفاده کوي. عام عرف، خاص عرف، رائج مذهب، د بشر د حقوقو منشور، د مدني حقوقو بین المللي میثاق او نور میثاقونه ...

او د مذهب احترام او آزادي هم د بشر د حقوقو په اعلامیه او هم د هر چا د خپل اساسي قانون په سر کي تضمین سوي دي. صرف مذهب له سیاست څخه بېل وي. حکومت ئې له آسمانه نه راځي، له مځکي څخه رازېږي د خلګو د آزادي ارادې محصول وي. دائمي نه

وي هر وخت د خلگو په خوښه بدلېږي. له پاسه نه راځي له کښې راځي. تقدس نه لري، احترام لري. حکومت د انسانانو نماینده وي، نوکر ئې وي، د خدای نماینده او د خلگو بادار نه وي. قانون ئې نه ازلي وي نه ابدي. د زمانې او عادي ژوندانه د شرایطو رعایت پکښې سوی وي او کله چې شرایط بدل سي او پر چا وغمېږي په آساني ئې بدلوي، ځکه د انسان د خپل لاس متاع دئ او د کومې خاصې ډلې په انحصار کي نه وي چي په ثمن قلیل یا ثمن کثیر ئې وپلوري یا ئې وپېرودي او د سرور کاکو مرحوم په شان پر خپله هوا او هوس د خدای تعالی د حکم نوم کښېږدي. ځکه چي تا ویل د ده په لاس کي وي.

اورېدلي مي وه چي د مرحوم امان الله خان په عصر کي چي مرحوم عبدالرحمن خان لودین د کندهار د ښار ښاروال مقرر سوی وو. په هغه وخت کي دا نوی غربي دود چي د پاچا یا جمهور رئیس تصویر به په دولتي ادارو کي ځوړند کېده رواج سوی وو. نو هغه مرحوم هم دا کار کړی وو. په یوه مناسبت ئې د ښار مخور رابللي وه. په هغه جمله کي د هغه زمانې مشهور اما تنگ نظره ملا چي متاسفانه زما څخه ئې اوس نوم هېر دئ هم راغوښتی وو. هغه د پاچا تصویر په لکړه وواهه او لاندي ئې راوغورځاوه او وئې ویل چي دا بت دلته څه کوي؟

عبدالرحمن خان مرحوم سربېره پر دي چي ډېر تېره مبارز وو حوصله ئې وکړه او د دې له پاره چي ملا صاحب د خدای تعالی و تحمل او مهربانۍ ته متوجه کړي پوښتنه ئې ځني وکړه چي ملا صاحب "الحمدلله رب العلمین" څه معنی؟ د ملا صاحب جواب وو: "ته کافر ستا پلار کافر" د الحمدلله معنی ده. د عبدالرحمن لودین پلار کاکا سیداحمد خان لودین وو. دوی دواړه د مطلقه سلطنتو سره په مبارزه کي ډېري قربانۍ ورکړې او ډېري سختۍ ئې گاللي دي. او که چیري افغانستان باقي پاته وي او د خپلو خدمتگارانو حق نه هېروي دوی به تل په درناوي یادوي او ستایي.

اما د ملا صاحب جواب که پر چا او چا ښه لگېدلی وي یا به ښه پر ولگېږي خو ځینو نورو ته به "وجادلهم باللتي هی احسن" او "خذالعفو وامر بالعرف و اعرض عن الجاهلین" او "والکاظمین الغیظ والعافین عن الناس" او "ولیعفوا و لیصفحوا" ور په زړه کېږي او د ملا صاحب علم او عمل ته به تعجب کوي او د عبدالرحمن خان تحمل به ستایي. مختصر دا چي غیر مذهبي قانون د مذهب په عقیدتي او عبادتي برخه هیڅ اړه نه لري. که څوک پنځه وخته لمونځ کوي او بل څوک درې وخته، که څوک په ایله لاس لمونځ کوي یا بل په بند لاس که څوک د خاورو پر جنس یوازي سجده جایزه بولي او که ئې بل څوک عامولي او که یوه ډله فقهاء عشر او زکات ورکوي او بله پر هغه سربېره خمس هم ورکوي او حتی په هغه چا هم چي هیڅ شی نه مني او هیڅ نه کوي اړه نه لري. هر یو آزاد دئ د بل محدودیت نه افاده کوي او هیڅ ډله د عامه امنیت د اخلال حق نه لري. جنگ جدل نه سي سره کولای.

د دې په مقابل کي خو نو مذهبي اداره ته وینې او پېژنې. که خلگو مذهبي اداره د خپلي آزادي رایي له لاري غوره کړې وي هم د هغه په تردید کي هیڅ توجیه نه ده موجوده خو تېوله خبره په دغه کي ده چي دغه ډول اداري عموماً له پورته څخه د توپک په زور پر خلگو تحمیلېږي.

نور بیا ...

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادونه

(څلرمه برخه)

د نورو څغاستو پاستو تر څنګ مي، په «جنګ» او «ډان» ورځپاڼو کي د جاب ویکنسیز برخي په منظمه توګه کتلې. یوه ورځ زما د توقع پر خلاف، په «ډان» ورځپاڼه کي د داسي مترجم یا ژباړونکي د ویکنسۍ اعلان خپور سوئ ؤ، چي وکړای سي پاړسي متنونه په انګرېزي او برعکس انګرېزي متنونه په پاړسي ترجمه کي. د پاکستان په تر ټولو معتبره انګرېزۍ ورځپاڼه کي د داسي اعلان په لیدو دونه خوشاله سوم، چي په کالو کي نه ځايېدم. په داسي حال کي چي د استخدام د شرایطو لا هیڅ درک و خرک نه ؤ مالوم، خو ما مخکي له مخکي بیا هر څه پر ځان ختم کړي وه. تر اعلان لوستلو وروسته مي سمدلاسه و مېرمني ته ورغ کړه:

- چي خدای یې چا ته ورکیي، دا نه پوښتي چي نوم دي خیرالدین دئ که هارون؟

څه دي پیدا کړه، چي خوله دي نه سره ورځي؟ مېرمني مي په خندا راغبرګه کړه.

-واخله په خپله یې ولوله.

ملځه کیې، خبره وکه چي څه لیکلي دي؟

د اعلان تفصیل مي ورته و وایه، خو د پاکستانییو ورځپاڼو نورو بې نتیجې اعلانو غوندي یې دا اعلان هم چندان پر زړه ښه و نه لګېدئ.

-ولي دي پر زړه ښه و نه لګېدئ؟

-د کمپیوټر اینسټرکټرانو وېکنسۍ خو هم د دغو ورځپاڼو له لاري اعلان سوي وې.

- مګر «ډان» ورځپاڼه خو «جنګ» غوندي نه ده. تا ته مالومه ده، چي «جنګ» ورځپاڼه و عامو پاکستانیانو ته خپرېږي؛ حال دا چي «ډان» د دې ملک د تعلیم یافته قشر او خارجي لوستونکو ورځپاڼه ده. ته پوهېږې، چي پاړسي ژبه له عمرو څخه په پاکستان، په تېره بیا کراچي کي هیڅ خریدار نه لري. په دې خاطر نو ما ته داسي ښکاري، چي دا اعلان به د کمي خارجي مؤسسې له خوا خپور سوئ یي. ځیني سفارتونه او یو و نیم خارجي مؤسسې له افغانانو سره د ډول ډول ارتباطاتو په وجه د انګرېزي او پاړسي ژبو و ترجمانانو ته ضرورت لري. سبا دستي به په خیر یو اپلیکېشن (غوښتنلیک) ور ولېږم. خدای مهربانه دئ. کېدای سي چي د مهاجرت د دې زحمتو او تکلیفو عوض په یوه وار را کي. په خپل وطن کي خو مو خاینو واکمنانو کند و کورت (قند و قورت) په یوه بیه اخیسته، بلکي د کروتو بیه تر کندو ډېره لوړه وه. تر هغه مهاله چي څوک د مزدور رژیم په چوکرګۍ کي نه

وای ولاړ، پوهي، لیاقت، پاک نفسی او وطندوستی د یوه توت ارزښت نه لاره. د تنظیمو حال مو هم د سر په په ستر گو ولیدئ. په دې بدبختانو کي خو تحصیل، پوهي، استعداد او کمال ته د کوپر (کفر) او الحاد په ستر گه کتل کیږي. ته پوهېږي دا تنظیمونه تر غله، قاتل او جنایکار له لوستي، پوه او هوښیار سړي څخه ډېر بد وړي. په دې ترتیب، موږ و تاسي غوندي بېطرفه خلگو ته د نجات بله هیڅ لار نسته.

- خدای دي وکي، چي دا ریښتیا هم د نجات یوه لار وخېژي؛ خو زه نه پوهېږم چي دا مهربانه خلگ به څوک یي، چي ستا و لیاقت او استعداد ته د قدر په ستر گه وگوري؟

- دا سهي ده چي په دې تور او کرغېړن بازار کي یوازي کلپي پیسې چلیږي؛ خو کله کله داسي هم پېښیږي، چي د نالایقو واسطه دارانو تر څنگ و پوهو او لایقو کسانو ته هم د کار امکانات پیدا سي. په دې چي واسطه والا خو د کار خلگ نه دي. د تنخاوو او امتیازاتو اخیستلو ته ښه تیار دي؛ خو په کار یې یا سر نه خلاصیږي یا د خولو تویولو زغم نه لري.

- زه چي دې حق تلفیو او بې انصافیو ته گورم، باور مي نه کیږي چي تا غوندي کسانو ته به د لیاقت او استعداد پر اساس څه کار او امتیاز در کړل سي.

دخوشال خان خټک بیت دي نه دئ په یاد:

چي غوټې پسي وهې په لاس به در شي
چا ویل چي په دریاب کي گوهر نشته

د نورو په تقدیر کي به بخت، واسطه او ډېري نوري خبري لیکلي سوي یي؛ خو زموږ و ستاسي په تندي کي بې زیار و کوښښه بل هیڅ شی نه دي کښل سوي. خپل کوښښونه او تلاښونه به کوو، انشاألله هغه ورځ لیري نه ده، چي خپل هدف او مراد ته ورسیږو.

- خدای دي ستا په خوله آمېن کي.

شپه مي په خیال پلونو تېره کړه. سهار مي تر چایو چښلو وروسته په ښایسته خط غوښتنلیک ولیکئ؛ او په خپله مي د «سوهراب گوټ» له پوسته خانې څخه په راجستري ډول ور واستاوه. څو ورځي وروسته د غوښتنلیک جواب راورسېدئ، چي په تر لاسه کولو یې ډېر خوښ سوو.

- ما تا ته نه ویل، چي دا اعلان د ډېري معتبرې مؤسسې له خوا خپور سوئ دئ. ته دا کاغذ او چاپ و گوره؟

دا خبري مي په داسي حال کي مېرمني ته وکړې، چي له ډېري خوشالییه په ځان نه پوهېدم.

په ډېر انتظار به مو څه گړوم، سیده به د مطلب خبره در ته وکم. په راغلي لیک کي غوښتنه سوې وه، چي د مفصلي اینټرویو یا مرکي دپاره باید د کراچي په «سولجر بازار» کي د اداري و دپتر ته ور سم.

تر دې مهاله مي په کراچي کي د خپلي استوگني په ټوله موده کي هیڅکله د «سولجر بازار» نوم نه ؤ اروېدلئ. په زړه کي مي د «کلیپټن»، «ډیفینس»، «طارق روډ»، «نرسری» او ځینو نورو عصري سیمو نومونه گرزېدل؛ ځکه په کراچي کي د خارجي مؤسسو دپترونه زیاتره په دغو سیمو کي وه.

د «سولجر بازار» په اړه د مالوماتو را غونډولو په خاطر د یوه دوست، گل خان، کور ته ورغلم، چي عمرونه یې له پلرني وطن، ړوب، څخه لیري د کراچي په پردېسی کي تېر سوي وه.

- گل خانه! په یاد به دي یي، چي څو ورځي مخکي مي په «ډان» اخبار کي یوه جاب ته اپلیکېشن لېږلئ ؤ.

- هو جي را ته ویلي دي وه.

-دا دئ نن يې جواب راغلئ دئ.

- واه دا خو ډېره د خوشالۍ خبره ده. و وايه چې څه ليکلي دي؟

ګل خان به هم نورو عامو پاکستانيانو غوندې په خبرو کې يو و نيم انګرېزي ټکې کارول، خو تر دې په آخوا يې په انګرېزي ژبه چندان سر نه خلاصېدئ؛ ځکه يې نو په خپله د مکتوب د لوستلو هڅه و نه کړه.

- ليکلي يې دي، چې راتلونکې جمعه د اينټرويو دپاره په «سولجر بازار» کې د دوی د دېټر ته ور سم؛ خو په دې نه پوهېږم چې «سولجر بازار» يې لا چيرې دئ؟ ته خو په دې ښار کې کوچنۍ لوی سوئ يې، حتماً بې لار و ګودر در مالوم يې!

- هارون بهايي! «سولجر بازار» خو د کراچي يوه ډېره زړه او غريبه علاقه ده. د قايد اعظم د مزار پر مخامخ ليار (لار) ورغلې ده.

- مخسد دي دا دئ، چې «صدر» ته نيژدې دئ؟

- هو جي تر «صدر» را په دې خوا سيده (ښې) لاس ته د قريباً بيس - پچيس (شلو - پينځه ويشتو) مينتو لار ده؛ مګر زه تعجب کوم چې د «سولجر بازار» اشتهار څنګه په «ډان» اخبار کې راغلئ دئ؟ زه خپله هم په ټول عمر کې يو يا دوه واره و «سولجر بازار» ته تللئ يم. «سولجر بازار» داسې علاقه نه ده، چې خارجي ادارې يا صحافيان (ژورناليستان) دې هلته کار وکي.

د ګل خان د دې بيانونو په اورېدو سره مې پر وجود يخي او به توی سوې. داسې مې و انګېرل لکه په يوه غوړه لمرينه ورځ چې نابېره توري او توپاني اوريځي را پيدا سي؛ او د سترګو په رپ کې د شنه اسمان او زرينو وړانګو مخ پټ کې.

- ګل خانه وروره! موږ يې څه کوو، چې د مړو علاقه ده که د غريبانو. مسأله دا ده، چې دا زما د خوښې کار دئ؛ کلونه کلونه مې په دې لار کې خوارۍ کښلي دي؛ که خدای خبره سره و رسوله، بيا خو د «سولجر بازار» او «کليپټن» پر ما څه پرک دئ؟

- هارون بهايي! ته بالکل ټيک وايې. «سولجر بازار» يا «صدر» پر تا څه پرک لري.

تر چايو څښلو او سياسي ګپ شپ وروسته مې له ګل خان څخه رخصت واخيستئ؛ او سيده کور ته ولاړم.

- ګل خان څه ويل؟ مېرمنې مې پوښتنه وکړه.

هر څه مې په زور و زېر ورته و ويل، چې دې هم په غور او توجه وا روېدل.

- غواړم يوګړی وروسته په خپله د «سولجر بازار» و خوا ته ور چکر سم؛ او هر څه له نيژدې و ګورم.

-سمه ده ډوډۍ وخوره بيا ولاړ سه!

تر ډوډۍ وروسته د پلازا و مخ ته په سروېس کې سپور سوم؛ او په لالوکېټ کې ځنې کښته سوم. «لالوکېټ» چې کراچي مېشتو کنداريانو به «لالوکېټ» باله، خو د پاکستان په رسمياتو او مطبوعاتو کې د «لياقت آباد» په نامه مشهور ؤ، د ګڼې ګوڼې داسې بازار ؤ، چې د نيمايي کراچي ښاري بسونه او ميني بسونه د هغه له منځه تېرېدل. د لويو او کوچنيو موټرانو دودونه او هارونونه، د مېوو، سبو او نورو خوراکي و غيرخوراکي موادو ډکې رېړۍ، پر سړکانو د پانو سرې تپلې، د ډول ډول پخو خوړو د مسالو توند و تېز بويونه او رنګارنګ چټلۍ د «لالوکېټ» تر ټولو لويي او ځرګندې نخښې وې.

زياترو افغانانو له «لالوکېټ» سره د يو بل دليل په وجه هم چندان مينه نه لرله، چې هغه په دې سيمه کې د هندي الاصله مهاجرو

يا د دوی په اصطلاح بيهاريانو (بهارتيانو) پراخه گڼه گوڼه وه؛ ځکه بيهاريانو د کراچۍ په ښورښو او هنگامو کې خورا بد نوم لاره.

البته، دا د خوشالۍ خبره وه، چې افغانانو و هغو هندي الاصله پاکستانيانو ته د مهاجرو خطاب کاوه، چې د پاکستان د جوړېدو له وخته د هندوستان له بېلابېلو ايالتو څخه و پاکستان ته راغلي وه، حال دا چې خپل ځانونه يې هيڅکله د مهاجرو په ډله کې نه شمارل. د دې شعوري يا غيرشعوري سوچ مانا دا وه، چې د افغانانو په زړونو کې لا د احمدشاه بابا د لويي امپراتورۍ نخشه ژوندۍ وه. پښتنو او کوټه څه چې، په کراچۍ کې هم ځانونه پردي نه گڼل.

څه سر به مو خوړوم، د «لالوکېټ» له تمځای يا بس سټاپ سره د «سولجر بازار» دوه -درې سروېسونه پر داسي لايزار بوزېدلي وه، چې له منتظرو کسانو څخه هيڅا و پورته کېدو ته زړه ښه نه کېده. تر څو دقيقو نور ځنډ وروسته د خدای په امر يو داسي زوړ او غورازه سروېس راغئ، چې آن د «سوهراب گوټ» د لاري زاړه او وراسته سروېسونه هم کاغذپېچه ورته مالومېدل. د سروېس له سلنسر څخه را وتونکو غليظو دوړو په څو ثانيو کې د تمځای هوا تکه توره کړه. سړي گومان کاوه، چې په سروېس کې به د دېزلو پر ځای رېږ يا قير سوځل کيږي. د سروېس د پښو ايښوولو ځای دونه ناموزه او کاواکه وه، چې هره شېبه يې د لوېدو خطر موجود ؤ. د دروازې په شاوخوا کې د سروېس له باډۍ څخه داسي تېره پيټلان راوتلي وه، چې تا به ويل تياري چړې دي؛ د زياترو چوکيو نه يوازې پوښونه څېري، بلکي سفنجونه هم کومبړ کومبړ وه. په سروېس کې دننه ځای ځای د پانو سرو تپلو هم د ناولدو مساپرو ستر گې اړولې.

د گل خان له وينا سره سم، سروېس تر څه واټن وروسته د قايد اعظم د مزار پر مخامخ په راسته لاس کي و تنگو او کږو کوڅو ته ننوتئ. د سروېسو، مازداوو او کوچنيو وېگنو موټروانانو د سړک په دواړو خواوو کې د خلگو له گڼه گوڼي څخه يو گام بې هارنه نسوای اخيستلای. د سړک په دواړو خواوو کې زړو ودانيو، تنگو کوڅو، بې خونده او بې نظمه دوکانو، د مېوو او سبو ماتو گوډو رېړيو او تبنگو د سپرليو پام اړاوه. په څو پوړيزو زړو او خيرنو بلاکو کي يو عالَم خلگو استوگه کول. د زياترو اپارتمانو (د پاکستانيانو په اصطلاح فلېټو) په برنډو کي پرېولل سوي کالي هوار وه. مالومېده چې همغه ورځ يې د اوبو د نوبت ورځ وه. سولجز بازار د کراچي د نورو زړو بازارو لکه «بولټن مارکېټ»، «لي مارکېټ» او داسي نورو پر خلاف، چې تر اوسه هم د کاروبار او سوداگرۍ مرکزونه دي، په ډېر ناوړه حالت کي پرېښوول سوئ ؤ.

سروېس د «سولجر بازار» و زړه ته را رسېدلئ ؤ، خو زه د عجايبو له ليدو څخه هک اريان وم، چې چيري کښته سم؛ او له کمه ځايه د ادرس په پيدا کولو پسي پوښتنه وکم. په سروېس کي مي له څنگ ته ولاړ سړي څخه پوښتنه وکړه. دادرس په ليدلو سره يې راته وويل:

- پر ښه وخت دي پوښتنه وکړه، که نه نو په څو دقيقو کي بې تر «سولجر بازار» څو ميله آ خوا تېر کړئ وای. ژرترژره دروازي ته ځان ور و رسوه؛ او پر راتلونکي سټاپ کښته سه؛ له بس سټاپ سره څو دوکانونه دي؛ له هر دوکاندار څخه چي پوښتنه وکې، بې تکليفه به دا ادرس در وښيي. په خط کي ليکل سوئ ادرس د بس سټاپ له دوکانو څخه تر څو گامو زياته فاصله نه لري.

د سپينږري له لارښووني سره سم پر

راتلونکي بس سټاپ کښته سوم. د بس سټاپ او دوکانو تر منځ د پښنو څو دقیقې لار وه. سیده و یوه دوکان ته ورغلم:

-وروره جانه! دا ادرس در مالوم دئ؟

-عجبه سړی مي و لیدي. پر خره سپور يې، خر دي ورک دئ.

د دوکاندار د دې طنزیه جواب په اورېدو نور هم خوشاله سوم، چې د مرکې ځای له عمومي سړک او بس سټاپ څخه چندان لیري نه دئ.

- ورور جانه! زه له «سوهراب گوټ» څخه راغلئ یم. له دې سیمي او بازار سره هیڅ اشنایي نه لرم. که زحمت نه يې یو وار د بیلډینگ لار او روده را و ښیاست.

-ولي نه. زموږ د دوکانو شا ته هغه دوه پوړیزه سیمېټي ودانۍ ستا په خط کي لیکل سوئ ادرس دئ. څو گامه مخامخ ولاړ سه بیا کیڼ لاس ته و گرزه. اووه اته گامه وروسته د کتبخانې اسماني دروازه را رسیږي. په ځینو (زینو) کي ور پورته سه، د دروازې پر مخامخ يې اینچارج (مسوول) ناست يي.

-شکریه.

-په مخه دي ښه.

د دوکاندار له لارښووني سره سم د دوکانو تر څنگ تېري سوي نرۍ کوڅې ته ور ننوتم. د کوڅې په سر کي د لوشو او چټلو اوبو کوچنی لښتی بهېدئ. اووه -اته گامه وروسته له عمومي سړک سره موازي یوه بله کوڅه را خلاصه سوې وه، چې په هغې کي دریم لمبر د اینټرویو دپاره نښاني سوئ ځای ؤ. هک پک وم، چې خدایه د «سولجر بازار» کندوکپر سړکونه، خیرني او له لوشو ډکي کوڅې، لغوړن کورونه او دوکانونه خو د «ډان» په معتبره ورځپاڼه کي له دې خپاره سوي اعلان سره هیڅ سر نه خوري. د کتابخانې د دروازې په لیدو سره سمدستي بیرته عمومي سړک ته را و وتم؛ او «لالوکېټ» خوا ته د تلوونکي سروېس په تمه له تمځایه سره ودرېدم.

تر لږ ځنډ وروسته یو بل غورازه سروېس را و رسېدئ. د څو کسانو تر کښته کېدو وروسته په ټېلو او ټمبو ور وختلم. د لاري په اوږدو کي مي په حساب یو نوی سروېس یا مازدا هم و نه لیدل. داسي مالومېده، چې د نوو سروېسو او مازداوو مالکانو اصلاً په دې ښوزلي او وروسته پاته سیمه کي کار کولو ته زړونه نه ښه کول؛ ځکه ښه مي په یاد دي، چې په «نرسري»، «طارق روډ»، «بهادر آباد» او «گلشن اقبال» کي هیڅکله زړې مازداوي نه گرزېدې.

عزیزانو! څه اوږدې و لنډې به در ته کوم، له «لالوکېټ» څخه د «سولجر بازار» د سروېس تر الیشولو وروسته، په لږ وډېر یوه ساعت کي کور ته ورسېدم.

- څه دي وکړه، ادرس دي پیدا کئ؟ مېرمني مي په اندېښناکه لهجه و ویل.

- ته خو اول یو گیلاس یخي اوبه را که، چې له ډېري گرمۍ او دودانو څخه مي ستوني وچ کلک دئ.

-دغه دئ واخله.

ما لا دمه نه وه تازه کړې، چې څو شېبې وروسته بیا همغه پوښتنه و سوه.

-دا ادرس څرک دي و لگوئ که څنگه؟

-هو ادرس مي پیدا کئ؛ خو

-څه خو؟

- خو دا ؤ چې د «سولجر بازار» کوڅې په داسي لوشو او مرداریو لړلي وې، چې د کابل د «باغِ علیمردان» کوڅې هم د «وزیر اکبر خان» کوڅې ورته مالومېدې.

- د سړکو او کوڅو خبري يې پر پرېږده، د مخسد د ځای خبره وکه!

- هغه ځای هم چندان اوږه نه ؤ. د سړک د غاړي د دوکانو تر شا یوه دوه منزله سیمیټي ودانۍ وه، چي غټه اسماني فلزي دروازه يې لرله؛ او دغه دریم لمبر پر کښل سوئ ؤ. و مخ تې د لوشو او چټلو او بو یو بویناک لښتی بهېدئ، چي په لیدو يې د سړي خوا ګرزېدله. د سړک د غاړي یوه دوکاندار را ته و ویل، چي په خط کي لیکل سوئ ادرس په حقیقت کي کتابخانه ده. اختر پټ مېږه نه دئ. دوې ورځي وروسته به هر څه لمر غوندي روښانه سي. که زما د خوښي شرایط وه کار به ور سره وکو، که نه خپله لار به واخلو. تر اوسه خو شکر خدای هر څه رسولي دي؛ انشأالله تر دې وروسته به هم چا ته نه اړ وزوو. ته سمدلاسه د کوچنیانو د مکتب له اداري سره خبري وکه، چي د دې ټرم پیسونه به ګرده د نوي تعلیمي کال په شرو کي در کو.

- زه خو به خبري ور سره و کم؛ مګر هغوی دا دریم وار دئ، چي د موسکا په لاس خط را لیږي؛ او د هري نجلۍ د درو میاشتو رخصتیيو پېشکي پیسونه غواړي.

عجبه ده په نوره دونیا کي اول نومره شاګردان نه یوازي له پیس ور کولو څخه معاف دي، بلکي د مکتبو او پوهنتونو له خوا ډول ډول کومکونه هم ورسره کیږي؛ خو دا د کنجوس زامن د رخصتیيو پیسونه هم مخکي له مخکي غواړي.

- ته دا چټل ملک هم د دونیا له متمدنو ملکو سره مقایسه کېې؟!

- مخسد مي دا نه دئ، چي مکتب دي د موسکا او ښکلا تر پیسونو تېر سي، بلکي صرف دونه غواړم چي دا پلا دي د دوی پیسونه پېشکي نه غواړي. کله چي نوی تعلیمي کال شرو سو، ګرده پیسونه به په خیر پر یوه ځای ور کو؛ اوس دي دوی د تېرو امتحانو نتیجې او رپوټونه را ولېږي. ته دا وار د مکتب له سر معلم سره خبري وکه، زه باور لرم چي هغه به زموږ دي معقولي او موجه غوښتني ته منفي جواب و نه وایي. خبره دا ده، چي موږ باید د کور د کرایې او خرڅ پیسې د کوچنیانو پر پېشکي پیسونو و نه لګوو. دا هم ور ته و وایه، چي پخوا مو ټول پیسونه مخکي له مخکي در کول؛ خو دا پلا يې نسو در کولای.

- ښه! زه به خبري ور سره وکم. خدای دې وکي، چي وې مني.

دوې ورځي وروسته مي ځیني چاپي او ناچاپه لیکني په یوه توره بسته کي واچولې؛ او د اینټرویو په نیامت د «سولجر بازار» پر لور ور رهي سوم. لږ و ډېر پینځلس دقیقې مخکي د مرکې ځای ته و رسېدم. په کوڅه کي د غټې اسماني دروازې تر زنګ وهلو وروسته سمدستي چا را ږغ کړه:

- پورته را سئ!

کرار کرار په ځینو کي ور پورته سوم. د ځینو په وروستیيو پټو کي له ورایه مالومه سوه، چي د مرکې ودانۍ ریشتیا هم یوه کوچنۍ کتابخانه وه. د کتابو، مجلو او ورځپاڼو د لوستلو دپاره د کتابخانې په یوه کونج (کنج) کي نسبتاً غټ نسواري مېز ایښوول سوئ ؤ، چي دا ګرې يې هیڅوک شا ته نه ؤ ناست. په بل سر کي د کتابخانې د مسوول د مېز تر شا پر دېوال د ایران د مذهبي مشر، ایات الله خمیني، لوی رنګه عکس د مراجعینو ستر ګي اړولې. د کتابتون مسوول په پورتني پوړ کي تر لیدو وروسته سمدلاسه را ږغ کړه:

- جنابه دې خوا ته راسئ!

تر سلام اچولو وروسته پر هغه چوکۍ کښېناستم، چي د کتابخانې د مسوول د مېز و مخ ته ایښوول سوې وه.

- صاحبه ښنګه راغلي یاست؟

- زه هارون یم؛ او ستاسي د مکتوب له

مخې نن و اینټرویو ته راغلئ یم.
- زما نوم ذوالفقار دئ. په لیدو مو ډېر خوشاله سوم.
د کتابخانې مسوول په اوردو ژبه و ویل.
ما له ډېرو کلو په فرهنگي چارو کې کار کړئ دئ. دلته مې د خپلو چاپي او ناچاپو اثارو ځیني نموني راوړي دي، چې ترجمې، لیکني او څېړني هر څه پکښې سته. نه پوهېږم تاسي د څه ډول اثارو و ترجمه کولو ته اړتیا لرئ. د خپلو موادو یوه پاڼه را کئ. زه بې ترجمه کم. که مو زما د ترجمې سبک خوښ سو. د قرارداد پر شرایطو به خبري سره وکو، که نه نو زه پر خپله لار ځم؛ او تاسي به په کم بل مناسب سړي و گورئ!
ما سوچ کاوه چې مرکه کوونکی به ارومرو په انگرېزي او پاړسي ژبو کې ژور لاس لري؛ خو د ده په خبرو کې له یو و نیم انگرېزي ټکو چپه، چې د هر لوستي او نالوستي پاکستاني په خبرو اترو کې پرېمانه اروېدل کیږي، د پاړسي او انگرېزي ژبې د لاس لرلو هیڅ څرک نه ښکارېدئ.
جي! ستاسي خبره بالکل معقوله ده. متاسفانه زه خپله پارسي سمه نسم و یلای؛ خو د بل چا په خبره تر یو حده پوهېږم. کله چې ایران ته ولاړ سم، د دوستانو په کومک خپل مشکلات حلوم. زموږ د کُتبخانې جنرل منېجر په پاړسي ژبه څه نا څه پوهېږي؛ خو دمگړی په یوه سفر و ځینو عربي هیوادو ته تللئ دئ.
د ذوالفقار صاب د خبرو ترپان په پای کې را ښکاره سول. ده وروسته و ویل:
- موږ ته ډېرو کسانو بې پیسو اثار ترجمه کړي دي. زه به تاسي ته د هغو مترجمینو د کار یو دوې نمونې در ښکاره کم، چې له کاناډا او امریکا څخه یې را لېږلي دي.
وروسته یې په انگرېزي ژبه د هغو دوو اثارو ټایپ سوي نوخسې د مېز له جعبې څخه را و ایستې، چې د شیعه مذهب له نظره یې د ځینو سیاسي او مذهبي مسألو څېړنه او سپېنه کړې وه. د کتابتون په تالار کې د خمیني له لوي عکس او دواړو ترجمه سوو اثارو څخه په ډاگه ښکارېدل، چې کتابخانه د پاکستاني شیعه گانو په یوه سیاسي - مذهبي سازمان پوري تړلې وه. دا خبره هغه مهال نوره هم سپینه سوه، چې د کتابخانې مسوول د ترجمې په مخسد د اُیران د ایات الله مُطهري دوه عرفاني -مذهبي اثار و مېز ته راوړه.
- خان صاب! تاسي دا دوه کتابونه یو سئ؛ او په ترجمه یې پیل وکئ، تر هغو پوري به زموږ د کتابخانې مشر هم را و رسېږي؛ پاته مسایل به له هغه سره وڅېړئ.
- لکه څنگه چې مې مخکي هم یادونه وکړه، زه یو افغان مهاجر یم. مېرمن او کوچنیان لرم. د کور کرایه او د کوچنیانو د مکتب پیسونه ورکوم. له دې خاطره نو بې قرارداده کار شرو کول مناسب نه گنم. ښه به دا وای، چې تاسي د اینټرویو کولو په خاطر دلته یو باصلاحیته شخص کښېنولئ وای؛ دقیق امتحان یې اخیستئ وای؛ او بیا یې د مسألې ټول اړخونه روښانه کړي وای.
دا وخت مې د خپل مرحوم پلار د وکالت اصول را په یاد سول، چې اول بې د هیواد د نافذو قوانینو په رڼا کې د موکلینو د داوو (دعوو) بېل بېل اړخونه په غور او دقت کتل؛ او تر دقیقي څېړني وروسته بې پرېکړه کوله، چې د داوې (دعوی/ دعوا) د دفاع مسوولیت پر غاړه واخلي که یا. هیڅکله بې د داسي چا د دفاع مسوولیت پر غاړه نه اخیستئ، چې له هره اړخه به حق په جانب نه ؤ. د افغانستان د ټولو وکیلانو پر خلاف، چې د داوې د گټلو او بایللو په دواړو حالاتو کې بې له موکلینو څخه پوره حق الزحمه غوښته، زما مرحوم پلار به

يوازې د داوې د ګټلو په صورت کې له موکلينو څخه د حق الزحمې غوښتنه کوله. له نورو وکيلانو څخه يې بل پرک دا ؤ، چې ده به د هرې داوې حق الزحمه پر درو برخو وېشله. لومړۍ برخه به يې د داوې شرو کولو پر مهال، دوهمه برخه به يې په عدلي او قضايي بهير کې تر څېنو پرمختګو وروسته؛ او بالاخره دريمه برخه به يې د داوې تر بشپړ ګټلو وروسته اخيستله. هغه مرحوم به په اوله ورځ و خپلو موکلينو ته ويل: که مې داوه بايلوله، اخيستل سوې حق الزحمه مو تولہ پر يو ځای بيرته درکوم. له نورو وکيلانو سره يې دريم لوی پرک په دې کې ؤ، چې د نېستمنو کسانو قانوني دفاع او ډول ډول حقوقي لارښووني يې همېشه بې حق الزحمې او شکرانې پر غاړه اخيستې. عجبه خو لا دا چې کله کله به يې له جېبه هم د داسې مظلومو او بېوزلو کسانو په لاس کې سل و دوه سوه ور کښېښوول. قانوني پوهه، پياوړی استدلال، پخه ليکوالي، پاکنفسي، استغنا، رېښتينولي، غريبدوستي او سهې ماملہ (معامله) هغه صفتونه او عوامل وه، چې خدای تعالی يې هيڅکله شا مځکې ته نه ور وسته. د مرحوم پلار د مدافع وکالت د دې زرينو اصلو په را يادېدو سره مې د کتابخانې ومسوول ته ور غبر ګه کړه:

- که مو د کتابخانې مشر هم دلې وای؛ او زما ترجمه يې په هره مانا خوښه سوې هم وای، بيا مې هم بې قرارداده د دې اثارو په ژباړولو لاس نه پورې کاوه.

- خان صاب! ستاسې خبرې ښخې دقيقې او معقولې دي. شرمنده يم چې په دې اړه ستاسې سره هيڅ مرسته نسم کولای. دا لو بدقسمتي ده، چې ستاسې غوندې پوه او باتجربه شخصيت له علمي او ادبي صلاحيتو څخه بې برخې کېږو.

ډېره ډېره مهرباني. هيله لرم زما له دې دريځه ناراضه سوي نه ياست، چې بې قانوني قرارداده وداسې لوی کار ته غاړه نه سم ايښوولای.

سمدلاسه مې خپل اسناد او ليکني د مېز له سره را تول او په بسته کې واچول.

ذوالفقار صاب اجازه راکئ، چې ولاړ سم.

- ټيک ده. په مخ مو ښه.

په زړه کې مې ويل: عجبه شوده خلګ دي، پيلان ساتي خو د پيلخانې دَرک يې نسته. ډېرو معتبرو ورځپاڼو ته اعلانونه ورکيي، مګر د سمبالولو دپاره يې هيڅ سررېښته او بندوبست نه لري؛ خپله په يوه توري پاړسي نه پوهيږي، خو خلګ د ښار له هغه سره واينټرويو ته ورغواړي؛ نې د امتحان خبره مالومه ده؛ نې د حق الزحمې او نورو شرايطو.

په داسې حال کې تر کوره و رسېدم، چې پر ستړيا او ستومانې سربېره مې پاک سپين کالي د خولو او دودانو له اسيته په داسې تورو ټپلو لړلي وه، چې تا به ويل کرۍ ورځ مې د ميستيريانو په دوکان کې شاګردي کړې وه.

- په خير راغلې!

مېرمنې مې په مانادارو ټکو را ړغ کړه.

- د سړي سر نه خلاصيږي، چې دا ملک څنګه چليږي؟

- ولې څه پېښه ده، چې په بسته ملک پسې دي را خيستې ده. د مرکې خبرې وکه!

- زه هم د همدې لعنتي مرکې خبرهِ درته کوم. تا ته مالومه ده، چې خلګو په «ډان» ورځپاڼه کې اعلان خپور کړئ ؤ. زما و غوښتنليک تې منظم جواب را ولېږئ. په خط کې ليکلې وه، چې پر دغه نېټه او دوغنه بجو و اينټرويو ته ورسم. په دې ګرمۍ کې له دې ځايه تر هغه «سولجر بازاره» ورغلم؛ خو په ټول دپتر کې داسې څوک نه ؤ، چې زما ترجمه وګوري او د کار شرايطو په باره کې خبرې



وکي. په دپتر کي يې د پاخه عمر يو گيردی، تور، چاغ سړی ناست ؤ، چي د سر او مونډی ږيري وښېتان يې تازه تورکړي وه. خوارکی نه په پاړسي پوهېدئ، نه په انگرېزي. کله کله بې د بېسوادو پاکستانيانو غوندي يو و نيم انگرېزي ټکی هغه هم په خپله عجب و غريبه پاکستاني ښه و وايه؛ خو په پاړسي شک هم نه ؤ. ما ول زه مو د رسمي مکتوب په ذريعه د کراچي له آ بله سره را غوښتی يم، خو تاسي په ټول دپتر کي داسي څوک نه لرئ، چي د اعلان سوي وېکنسۍ دپاره د کانديدانو ورتيا وگوري؛ باقاعده امتحان واخلي؛ او د کار د شرايطو او امتيازاتو په باب خبري وکي. ده به نه وړل نه راوړل، يوازي بې د هغو کسانو ترجمه کړي متنونه را ته پورته و کښته کول، چي د شيعيزم او ايران پالني په مينه يې بې حق الزحمې له امريکا او کاناډا څخه ور ته رالېرلي وه. له دې خبرو او کرتوت څخه يې ما ته داسي ښکارېده، چي گوندي زما څخه هم دا تمه لري.

-ښه بالاخره څه پرېکړه وسوه؟

څه پرېکړه کېدای سوای، ته په خپله ووايه؟

-خبره پر څه تمامه سوه؟

-سړی ولاړ سو د مېز له جعبې څخه يې د ايات الله مطهري او يوه بل ايراني اخون دوه پنډ کتابونه پر مېز را ته کښېښول. ول خان صاب، تاسي د دغو دوو کتابو په ترجمه پيل وکئ، تر هغو پوري به زموږ د کتابخانې مدير هم را ورسيږي. وروسته به له هغه سره د کار شرايطو په اړه خبري وکئ.

- ما ته د ذوالفقار صاب دا خبري کټ مټ بېگار غوندي و ايسېدې. په داسي حال کي، چي امتحان نه يي اخيستل سوئ؛ د کار د شرايطو او امتيازاتو په اړه روښانه او مشخصي خبري نه يي سوي، د کتابو په ترجمه لاس پوري کول د ثقاف شرکت تر وعده خلافی او خوگرۍ هم نامعقوله خبره وه. تر اوسه خو خدای هيچا ته نه يم محتاج کړئ. که خدای مه کړه لاستنگی او محتاج هم وای بيا هم حاضر نه وم، هغه تېروتنه بيا تکرار کم، چي له ثقاف او ډاکټر غني سره مي د مرکې او کار شرو کولو پر وخت کړې وه.

- دا خو دي ډېر ښه کار کړئ دئ؛ مگر زه باور لرم چي ايرانيانو به د خپلو اثارو د ترجمې په خاطر و پاکستانيانو ته پرېمانه پيسې ور کړي يي. دا څنگه امکان لري، چي څوک دي د «ډان» په سويه بين المللي ورځپاڼه کي اعلان ورکي؛ خو د خپلي پروژې د بشپړولو دپاره دي مالي امکانات و نه لري. تا ته تر ما ښه مالومه ده، چي ايرانيان خو پاکستانيانو غوندي لغړيان او لُچمرغان نه دي.

- موږ د ايرانيانو او پاکستانيانو د پيسو په ماملې هيڅ اړه نه لرو. کار ور ته کوو؛ او د خپل کار په بدل کي حق الزحمه څني غواړو. د خواشينۍ ځای دا دئ، چي دوی جاهلان او شوده گان په ورځپاڼو کي اعلانونه خپريي؛ خلگ په رسمي مکتوب مصاحبې ته ور بولي؛ خو په پای غواړي هر څه په دوعا و سلام سرته ورسيي. د افغانانو دا متل چي وايي: «بُز در غم جان کندن و قصاب در غم چربو»، زموږ د ماملې ښه مصداق ؤ.

پر ټولو سرگردانييو او نامېندييو سربېره، د کار موندني په هيله زما څغاستي پاستي تر ښايسته ډېره وخته همداسي جاري وې؛ خو د نتيجې هيڅ څرک نه ښکارېدئ. يوه ورځ بې امي و تمي کار خپله کور ته راغئ؛ او زه د دې خبري په حقانيت يو وار بيا پوه سوم چي وايي: ته حرکت کړه، خدای به برکت.

حافظ وظيفهٔ تو دعا گفتن است و بس
در بند آن مــباش که نشــنيد يا شنيد

نور بيا ...



وګورئ تاسي نیازمندي او د مین تابه له کمینۍ سره د دغې غزلې په مقطع کې بیرته دی هغه خان او هغه د پښتنو توره په لاس سپه سالار دئ او ځان کمزوری نه بولي، په ډاګه داسې وایي:

زه خوشحال کمزوری نه یم چې به ډار کړم
په ښکاره ناري وهـم چې خــوله ئې راکـړه

شمس الدین کاکړ د کندهار د خوا یو شاعر دئ، وایي چې کاکړ پر خپل ګای ولاړ دي، او پر هوډه ټینګ وي. دغه ګای او هوډه د شمس الدین په شعر کې هم ښکاره ده. د معشوق له جوره وطن پرېږدي، او ځي. زړه ئې سوځي، او په پردېسي کې ژاړي، مګر پر خپله هوډه ولاړ دئ، وایي:

دوباره به مخ در کـوړ نه کړم له ننګه
همدغه شمس الدین چې ولاړم ولاړم

مګر پیرمحمد د بلې دنیا سړی وو، په مینه کې ډېر پوخ سوی وو، بېلتانه او د مینې کړاوونو د عشق د کوڅو په پیچ و خم کې داسې روږد کړی وو چې د هر چا همدرد او خواخوږی دوست وو.

ژړا او نارې، سورې د هر مین سره ملګرې وي او هم دغه مضمون دئ چې د عشقي شاعرۍ اکثره برخه ئې نیولې ده، یوه پارسي شاعر ویلي وو:

بیا که گریهٔ من آنقدر زمـین نگذاشت
که از فراق تو خاکی به سر توان کردن

سعدي د دې ژړا علت او فلسفه داسې بیانوي:

اگر این داغ جگر سوز که بر جان منست
بر دل کــوه نهی ســنگ به آواز آید نای

انسان د ژړا او کوکارو او غلبلو ممثل دئ، کله چې انسان په ځنګله کې ابتدایي ژوند کاوه، یو وچ نل ئې وموند، او په هغه کې ئې پو کړه او د هغه حزین ږغ تر اوسه لا هم د انسان سره ملګری دئ، او نل د هر دردمن سړي د زړه سوی په ږغیزو ازانګو کې راباسي. نو ځکه په شرقي شاعرۍ کې نی د درد او سوي او مینې سمبول دئ، او مولانا بلخي خپل مهم مثنوي د همدغه نی په زمزمه افتتاح کوي:

"بشنو از نی چون حکایت میکند"

علامه اقبال هم د خپل هنر او خپل بزم شوق ته ګرانبها تحفه هم دغه "یك نیستان ناله" راوړي او وایي:

آنچه من در بزم شوق آورده ام دانی که چیست
یك چمن گل یك نیستان ناله، یك خــم خانه می

شیدا خټك هم د مینې په میدان کې خپلې کریږې او غلبلې هغه وخت رسا بولي، چې د نل په شان ځان له خوښې ځخه تش وګڼي:

ماتهې کړ خــپل پهلو له شــادمانیه
شیدا درست په شان د نی آه و ناله یم

مګر د پیرمحمد هنر، بېل جامعیت او ځانته رنګیني او ښکلا لري، د عشق او بېلتانه د نازکو نکتو په ځرګندونه کې خپل هنر ته اجتماعي ارزښت هم ورکوي، او هغه مقصد چې نورو شاعرانو په مجرد ډول اداء کړی دئ پیرمحمد په خپل هنري لیاقت هغه ته یو نوی رنګ ورکړی، دی وایي:

بېلتانه په غم شریك کړم د غمجنو
د هر چــا پر غـــاړه ژاړم لکه نی

په لفظي اعتبار دغه بیت د کندهار په یوه خاصه لساني اصطلاح اړه لري، غاړه ور اچول د نی نوازانو یو خوږ تعبیر دئ او بیا هم پر غاړه ورسره ژړل د خواخوږۍ او همدردۍ له پاره خاصه ادبي وینا ده.



# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department

### د پیرمحمد کاکړ له غزلو څخه

خواب مي ليدلی چي پر بـل لور ځم
له خپله کوره په شـور ماشـور ځم
د بـڼ طوطي يم په زړه ويشـتلی
له پاسـه کښته څنګونه خپور ځم
مرکب و ما ته د فراق زين سـو
آهونه کاږم وربـاندي سـپور ځم
کوتوال مي لاس دئ تر شـا تړلی
خجل و لور ته د شـاه سرتور ځم
جدايـي اور ده د ښـو يارانـو
چاره مي نسـته پر لور د اور ځم
غـماز مـي لار ده راتـه نيولـې
رضـا مـي نـه ده د زړه پـه زور ځـم
غم د ځان ژاړم زه پير محـمده!
کـه څـه مزار تـه د پـلار و مـور ځـم






د چاپ ځای ملالی مطبعه